| ۱-۶ | د ښوونکي فعالیتونه | د زده‌کوونکو فعالیتونه | |
|---|---|---|---|
| | - ښوونکی لوست لولي.<br>- ښوونکی د نعت په سم لوستلو کې له زده‌کوونکو سره مرسته کوي.<br>- ښوونکی له څو تنو زده‌کوونکو سره مرسته کوي چې نعت په خواږه اواز ووايي.<br>- ښوونکی له زده‌کوونکو سره په نعت کې د عربي، دري او پښتو کلمو په پېژندلو کې مرسته کوي.<br>- ښوونکی د ځوابونو په ویلو کې په جلا ډول له هر زده‌کوونکي سره مرسته کوي.<br>- ښوونکی زده‌کوونکي د ټولګي مخې ته د وينا لپاره رابولي.<br>- ښوونکی د زده‌کوونکو ډله ییز فعالیتونه څاري او مرسته ورسره کوي او زده‌کوونکو ته کورنۍ دنده سپاري. | - زده‌کوونکي نعت ته غوږ نیسي.<br>- زده‌کوونکي نعت په پټه لولي.<br>- څو تنه زده‌کوونکي د ټولګي په وړاندې نعت په وار په لوړ اواز لولي.<br>- د زده‌کوونکو یوه ډله په ګډه نعت په خواږه اواز وایي.<br>- زده‌کوونکي په نعت کې عربي، دري او پښتو کلمې بېلوي.<br>- زده‌کوونکي نوې کلمې یادوي او په جملو کې يې راوړي.<br>- ټول زده‌کوونکي له استثنا پرته په ډله ییزو فعالیتونو کې فعاله ونډه اخلي.<br>- زده‌کوونکي په وار پوښتنو ته ځوابونه وایي.<br>- زده‌کوونکي د ټولګي په وړاندې په وينا کې ونډه اخلي.<br>- په خپلو کورونو کې کورنۍ دندې سر ته رسوي. | ۳۵ دقیقې |

۷- **د متن پوښتنو ته ځوابونه:**

ټولې هغه کلمې چې د عربي ژبې کوم توری (ث، ح، ذ، ص، ض، ط، ظ، ع، ق، ف) په کې راغلی وی، هغه عربي کلمې دي، لکه نعت، حبیب، قیامت، قیل وقال.
فارسي کلمې، لکه ګفتګو، نوش، زلال، ریګ، بېهوده، آګاه،

دروازې مې دواړه سترګې د ختن شوې...
یعنې د خپل یار او حبیب، حضرت محمدﷺ د خط او خال (حسن او ښکلا) په لیدلو مې دواړه سترګې د ختن دروازې شوې. ختن په چین کې د یوې سیمې نوم دی، چې د مشکو له امله یې خورا زیات شهرت درلود. مشک د هوسۍ له نامه څخه پر ډبرو یا وښو باندې د موښلو پر مهال د یوې مایع له راوتلو څخه جوړېږي او خورا ښه بوی لري. اصلي مشک ډېر لږ پیدا کېږي او بیه یې خورا ګرانه ده.

**یادونه:**
ددې کتاب له هر لوست څخه وروسته د لویانو خبرې راوړل شوي دي. دا برخه د زده‌کوونکو او د هغوی داستعدادونو د لا غوړېدو لپاره لیکل شوې ده هغوی دې هڅه وکړي پخپله د هغې پر معنا او مفهوم ځانونه وپوهوي. ښوونکی دې هغوی ته لارښوونه وکړي او د لویانو د خبرو پر ارزښت دې یې وپوهوي.

۸ - **ښوونکي ته د زده‌کړې سرچينې**

- سيرة النبيﷺ

- د اسلام تاريخ

د پښتو شاعرانو د شعرونو په زياترو ديوانونو کې حمد او نعت راغلي دي. له موجودو شعري ټولګو او ديوانونو څخه دې يو څو نمونې راوړي.

# دریم لوست

## د تدریس وخت: (درې درسي ساعتونه)

| ګڼه | سرلیکونه | موضوعګانې | وخت |
|---|---|---|---|
| ۱. | **د لوست موضوع** | **پسرلی او ښکلا** | |
| ۲. | **د زده‌کړې پوهنیزې، مهارتي او ذهنيتي موخې** | د لوست په پای کې به زده‌کوونکي لاندې موخې تر لاسه کړي:<br>- د پسرلي پر ارزښت به وپوهیږي.<br>- په زده‌کوونکو کې د ښکلا د پېژندلو وړتیا ځواکمنه شي.<br>- د پسرلي ښکلا او د کال ببلابېل فصلونه به وپېژني.<br>- د پسرلي له موسم سره به د ژوند د پسرلي (ځوانۍ) د پرتله کولو له لارې زده‌کوونکي د ځوانۍ پر ارزښت وپوهیږي.<br>- زده‌کوونکي د پسرلي پر ځانګړتیاوو به وپوهیږي.<br>- په زده‌کوونکو کې به د نوو او ابداعي لیکلو وړتیاوې وروزل شي.<br>- په خپلواک ډول به د متن د پای فعالیتونه سرته ورسوي. | |
| ۳. | **د تدریس لاره** | لوستل، لیکل، پوښتنې او ځوابونه، یوه ځری فعالیت، ډله ییز فعالیتونه | |
| ۴. | **د تدریس توکي** | درسي کتاب، توره دړه، تباشیر، چارت، د پسرلي یوه ښکلې منظره، کتابچه او قلم | |
| ۵. | **د ارزولو لاره او میتود** | شفاهي ارزونه،لیکلي ارزونه، د څارنې ارزونه | |
| ۶. | **په ټولګي کې د ښوونې او زده‌کړې فعالیتونه** | **لومړني فعالیتونه:**<br>- ستړي مه شي، حاضري، د کورنۍ دندې کتنه | ۶ دقیقې |
| | | - **دانګېزې رامنځته کول داسې انګیزوي پوښتنې چې دلوست سرترې و مومي.**<br>- د پسرلي عنوان په توره دړه لیکل،<br>- د پسرلي د ښکلې او نرمې هوا، ګلانو، شنیلیو، دغرونو په لمنو کې د رمو څرېدلو او د نورو ښکلاوو را په زړه کول د زده‌کوونکو په زړونو کې د خوښۍ د احساس رامنځته کول او د یو څو پوښتنو له لارې د لوست پیلول.... | ۴ دقیقې |

| ۱-۶ | د ښوونکي فعالیتونه | د زده‌کوونکو فعالیتونه | |
|---|---|---|---|
| | - ښوونکی متن په لوړ غږ لولي.<br>- ښوونکی د متن په لوستلو کې له زده‌کوونکو سره مرسته کوي.<br>- ښوونکی د کال د فصلونو او آب و هوا په اړه زده‌کوونکو ته معلومات ورکوي.<br>- ښوونکی د پسرلي او د هغې له ښکلا او شعري طبیعت سره زده‌کوونکي بلدوي.<br>- ښوونکی په زده‌کوونکو کې د ښکلا احساس پیاوړي کوي.<br>- ښوونکی په زده‌کوونکو کې د یوې موضوع په هکله د څه لیکلو وړتیا رامنځته او پیاوړي کوي.<br>- ښوونکی د ځوابونو په ویلو کې له هر زده‌کوونکي سره جلا جلا مرسته کوي.<br>- ښوونکی زده‌کوونکي د ټولګي په وړاندې د وینا لپاره هڅوي.<br>- ښوونکی د لوست لنډیز تکراروي او د زده‌کوونکو له پوهې څخه ډاډ ترلاسه کوي.<br>- ښوونکی په ډله ییز فعالیت کې له زده‌کوونکو سره مرسته کوي.<br>- ښوونکی زده‌کوونکو ته د متن د وروستۍ برخې د پوښتنو د ځوابونو لارښوونه کوي.<br>- ښوونکی زده‌کوونکوته د کورنۍ دندې لارښوونه او سپارښتنه کوي. | - زده‌کوونکي متن ته غوږ نیسي.<br>- زده‌کوونکي په چوپه خوله متن لولي.<br>- یو څو تنه زده‌کوونکي متن په وار سره په لوړ غږ لولي.<br>- زده‌کوونکي د کال د څلورګونو فصلونو او د هغوی د ځانګړتیاوو په هکله خبرې کوي.<br>- یو څو تنه زده‌کوونکي د پسرلي د ښکلا په اړه یوه، یوه دقیقه خبرې کوي.<br>- زده‌کوونکي نوې کلمې یادوي او په جملو کې یې راوړي.<br>- زده‌کوونکي پوښتنو ته ځوابونه وایي،<br>- زده‌کوونکي د لوست په لنډیز ځان پوهوي.<br>- زده‌کوونکي د انسان د عمر پسرلي (ځواني) سره د طبیعت پسرلی پرتله کوي او پر مفهوم یې ځان پوهوي.<br>- زده‌کوونکي د ځوانۍ پر ارزښت ځان پوهوي او له هغې څخه د کار اخیستلو وړتیا پیدا کوي.<br>- زده‌کوونکي په ډله ییز فعالیت کې فعاله ونډه اخلي.<br>- زده‌کوونکي د متن د وروستۍ برخې پوښتنو ته په فعال ډول ځوابونه ورکوي،<br>- زده‌کوونکي په کورونو کې کورنۍ دنده سر ته رسوي. | ۳۵ دقیقې |

۷ - **د متن پوښتنو ته ځوابونه**

- ښوونکی دې د زده‌کوونکو د ښې مینې او ذوق د راپیدا کولو لپاره د فعالیتونو مختلفې برخې په ډېر غور د متن له منځ یا د هغوی د پوهې پر بنسټ پر هغوی کار وکړي.

**۸ - ښوونکي ته د زده‌کړې سرچینې**

- ښوونکی دې د لا زیاتو معلوماتو لپاره هغو سرچینو ته مراجعه وکړي، چې د پسرلي په هکله په کې معلومات لیکل شوي وي.

پسرلی د کال نوی موسم دی، پسرلی له خپلې ټولې ښکلا سره د طبیعت د نوې ځوانۍ موسم دی. بې له شکه د پسرلي او نوي کال په رارسیدو سره د ژوند یوه نوې پاڼه پیل کیږي. هو! یو کال زموږ له عمره تیریږي. په پسرلي یا

نوي کال کې کاينات ژوندي کيږي، ژمنۍ ستونزې او مشکلات له منځه ځي، نوې هيلې او نوي خيالونه د انساني ژوند بنسټ او بنياد جوړوي. پسرلی، ښکلا، تازګي، ښيرازي او مستي له ځان سره لري.
د پسرلي په ښکلي موسم کې تورې وريځې د شنه آسمان په څنډو کې سرګردانه ګرځي او د پسرلي د راتګ له امله د خوښۍ او ښکې تويوي. نسيم د پسرلي په موسم کې نيمه شپه له ګلانو سره راز ، نياز او لوبې کوي.
سپوږمۍ په خپلو زرينو وړانګو د پسرلي تيارې رڼا کوي او هغې ته ځانګړې ښکلا ورکوي.
ځليدونکی لمر خپلې زرينې وړانګې د نړۍ پر لوړو ژورو خوروي او د ژونديو موجوداتو د ودې او پراختيا لامل ګرځي. پسرلی ژمنۍ ستړياوې له منځه وړي او د طبيعت ښکلا زياتوي. د پسرلي په موسم کې ټول ژوندي موجودات په خوځښت او حرکت پيل کوي، ځکه چې د پسرلي موسم په خپله حرکت او خوځښت دی. په دې موسم کې ونې شنې کيږي، بوټي او واښه سرونه پورته کوي، غوټۍ خاندي، تورې وريځې ژاړي او د خوښۍ او ښکې د باران په شکل کې تويوي. سيندونه، دريابونه په مستۍ راځي او طبعيت چې څومره ښکلا لري، په دې موسم کې يې ننداري ته وړاندې کوي. ونې ګلان کوي او خپلې لوڅې ليچې له بنګړو ډکوي. بلبلان سندرې وايي، الوتونکي د نوي ژوند لپاره نوي کورونه او ځالې جوړوي. لنډه دا چې د کال په دې فصل کې طبيعت، لکه: ناوې ځان سينګاروي.
له دې امله چې د پسرلي موسم د نوي کال د پيل وخت دي، راځئ ددې موسم له طبيعي حرکت او خوځښت سره سم حرکت پيل کړو. د ښوونکو لپاره ضروري او اړينه خبره داده، چې د هېواد نوي نيالګي د علم او پوهې په ګاڼه سمبال کړي. د دوی کړو وړو ته ځانګړې پاملرنه وکړي. لار ورکو کسانو ته د ژوند په تياروکې د علم او عرفان څراغ په لاس ورکړي. هغوی ته د ښې او روښانه راتلونکي په هکله زيری ورکړي او سمې لارې ته يې راوبولي.
ښوونکي بايد د ځوانانو ځوانو هيلو او ارزوګانوته پاملرنه وکړي. نوي ژوند او نيکمرغه راتلونکي ته يې وهڅوي.
زده کوونکي بايد ددې موسم له طبيعي حرکت سره سم پل واخلي. له ښې هوا او ښکلاوو يې د زده کړې په بهيرکې ګټه واخلي. خپلې روغتيا ته په پاملرنې سره هڅه او هاند وکړي چې د نوي کال په اوږدو کې په منظم ډول درسونه ووايي؛ خپلې زده کړې وکړي. د ژوند له يوه ښکلي پسرلي څخه ډيرې ښکلاوې تر لاسه او ارزښتمنې او ښې زده کړې وکړي.

# خلورم لوست

## د تدریس وخت: (درې درسي ساعتونه)

| ګڼه | سرلیکونه | موضوعګانې | وخت |
|---|---|---|---|
| **۱.** | **د لوست موضوع** | **په پښتو کې د (ی) ډولونه** | |
| **۲.** | **د زده کړې پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې** | د لوست په پای کې به زده کوونکي لاندې موخې تر لاسه کړي:<br>- د (ی) پنځه ګونې ډولونه؛ یعنې اوږده (ې)، نرمه (ی)، څرګنده (ي)، امریه یا فعلي (ئ)، زورکۍ واله یا د تانیث (ۍ) به وپېژني او پر توپیر باندې به یې پوه شي.<br>- په لیکلو او لوستلو کې به (ی) ګانې په سمه توګه وکاروي.<br>- په لیکلو او لوستلو کې به د (ی) ګانو د پېژندلو ورتیا تر لاسه کړي.<br>- د سم لیک او لوست د زده کړې ورتیا به تر لاسه کړي .<br>- په خپلواک ډول به د متن د پای فعالیتونو د سرته رسولو ورتیا ومومي.. | |
| **۳.** | **د تدریس لاره** | لوستل، لیکل، پوښتنې او ځوابونه، یوه ځری فعالیت، ډله ییز فعالیتونه | |
| **۴.** | **د تدریس توکي** | درسي کتاب، ورځپاڼه یا کوم بل متن، توره دړه، تباشیر، چارت، کتابچه او قلم | |
| **۵.** | **د ارزولو لاره او میتود** | شفاهي ارزونه، لیکلۍ ارزونه، د څارنې ارزونه، دښوونکي د یاداشت کتابچه. | |
| **۶.** | **په ټولګي کې د ښوونې او زده کړې فعالیتونه** | لومړني فعالیتونه:<br>- سترې مه شي، حاضري، د کورنۍ دندې کتنه، | **۶ دقیقې** |
| | | - **د انګېزې رامنځته کول**: - په توري درې دې ولیکل شي:<br>- د (ی) بېلا بېلې بڼې<br>- د (ی) ګانو د بېلا بېلو بڼو د یادولو پر اړتیا ټینګار.<br>ددې کار د لاروښانتیا لپاره د یو متن لوستل چې (ی) ګانو ته یې ټکي نه وي ایښودل شوي. بیا د همدې متن د هغه بڼې لوستل چې (ی) ګانو ته یې سم ټکي ایښودل شوي وي. په دې توګه د (ی) ګانو د زده کړې پر ارزښت باندې د زده کوونکو پوهول. | **۴ دقیقې** |

| ۶-۱ | د ښوونکي فعالیتونه | د زده‌کوونکو فعالیتونه | |
|---|---|---|---|
| | - ښوونکی متن په لوړ غږ لولي.<br>- ښوونکی په سمه لوستنه کې له زده‌کوونکو سره مرسته کوي.<br>- ښوونکی په متن کې د (ی) ګانو د بېلابېلو بڼو په زده‌کړې ټینګار کوي.<br>- ښوونکی د ځوابونو په ویلو کې له هر زده‌کوونکي سره جلا جلا مرسته کوي.<br>- ښوونکی د (ی) ګانو له بېلا بېلو بڼو سره زده‌کوونکي بلدوي،<br>- ښوونکی د وینا لپاره د ټولګي په وړاندې زده‌کوونکي هڅوي،<br>- ښوونکی زده‌کوونکي په څو ډلو باندې وېشي، هرې ډلې ته ځانګړې دنده سپاري او د هغې پایلې ګوري،<br>- ښوونکی د لوست لنډیز او د (ی) ګانو بېلا بېلې بڼې تکراروي،<br>- ښوونکی د خالي ځایونو په ډکولو کې له زده‌کوونکو سره مرسته کوي.<br>- ښوونکی زده‌کوونکوته کورنۍ دنده سپاري. | - زده‌کوونکي متن ته غوږ نیسي.<br>- زده‌کوونکي په چوپه خوله متن لولي.<br>- زده‌کوونکي د (ی) ګانو په بېلا بېلو بڼو ځانونه پوهوي او په کلمو کې یې کاروي او لولي یې.<br>- زده‌کوونکي نوې کلمې یادوي او په جملو کې یې راوړي.<br>- زده‌کوونکي پوښتنو ته ځوابونه وایي،<br>- زده‌کوونکي د ټولګي په وړاندې په وینا کې فعال ګډون کوي.<br>- زده‌کوونکي په متن کې د (ی) ګانو بڼې پېژني.<br>- زده‌کوونکي د یو متن په لیکلو کې (ی) ګانې سمې لیکي.<br>- زده‌کوونکي په ډله ییز کار کې فعاله ونډه اخلي.<br>- زده‌کوونکي د متن د وروستۍ برخې په فعالیتونو کې فعاله ونډه اخلي.<br>- زده‌کوونکي په کورونو کې کورنۍ دنده سر ته رسوي. | ۳۵<br>دقیقې |

**۷ - ښوونکي ته لارښوونه**

څنګه چې ددې کتاب هر لوست په یوې اوونۍ کې تدرسیږي؛ ښاغلی ښوونکی دې نوموړی لوست په څو برخو وویشي. هره برخه دې له بېلګو سره یو ځای په یوه، یوه ورځ کې تدریس کړي. په پای کې دې ټول لوست یو ځل بیا تکرار او په زده‌کوونکو دې د (ی) ګانو ډولونه په بېلابېلو کلمو او جملو کې تمرین کړي. ښوونکی دې داډ تر لاسه کړي چې هرزده‌کوونکي د (ی) ګانو بڼې یادې کړي او په لیك او لوست کې یې توپیر وکولای شي. ښوونکی کولای شي د لوست په پیل، جریان او په پای کې د یو لړ پوښتنو له لارې د زده‌کوونکو پوهه او وړتیا وارزوي. پر دې سربېره دې په پاتې لوستونو کې (ی) ته ځانګړی پام وکړي او په هر لوست کې دې یې پر زده‌کوونکو تمرین کړي.

**۸ - ښوونکي ته د زده‌کړې سرچینې:**

په پښتو ژبه کې د بل هر توري په شان (ی) ګانې د کارونې ځانګړې ځایونه لري. که چېرې په نثر او نظم کې هره یوه پر خپل ځای وکارول شي. نو د متن په روانۍ، اسانۍ، مانیزې څرګندونې او خوږلنۍ کې به ډېره مرسته وکړي. خو که چېرې دا(ی) ګانې پر ځای او خپله بڼه ونه کارول شي، نو لوستونکی د متن په لوستلو کې ټکنی کېږي او کله کله دې ته مجبوریږي چې د جملې پای ته ځان ورسوي او بیا له سره د جملې روغه بڼه ولولي . دا د دې معنا ورکوي چې د پښتو هر لوستونکی د پښتو د هر مضمون متن دوه ځله لولي . کله کله د (ی) ګانو د ناسمې کاریدنې له کبله یوه کلمه، جمله یا ترکیب هماغه د لیکوال غوښتنې معنا هم نه شي رسولی او لوستونکی له ذهني ستړیا سره مخامخوي. دلته د دې

تورو (ی ګانو) لـنـډه تشریح راوړو. په پښتو کې د (ی) توري په لاندې پنځو بڼو لیکل کېږي:

۱- نرمه ( ی) : هغه (ی) ده چې د مخه توری یې زور لري او پسته ویل کېږي. دا ډول (ی) ساده لیکل کېږي. ټکي او کومه بله نښه نه لري. دا (ی) په حقیقت کې له دووغږونو څخه جوړه شوې ده، یعنې یو غبرګ غږ دی چې یوغږ یې خپلواک (واول) او بل یې نیم واک (سیمي واول) دی. زیاتره د مفردو نارینه نومونواو فعلونولپاره راځي. لکه : سړی، لرګی ، اغزی، تللی ،لیکلی، وهلی.

۲ ـ څرګنده معروفه (ي): هغه ده چې دمخه توری یې دروند زېر لري. دلته (ي) لنډه ویل کیږي. دا ډول (ي) څنګ په څنګ دوه ټکي لري. دا یو خپلواک غږ دی. زیاتره نارینه نومونه چې په دې (ي) پای ته رسیدلي وي د جمع حالت لپاره یې (ي) راځي او په ځینو نسبتي ستاینومونو کې هم استعمالېږي. لکه: سړي، لرګي، اغزي، کالي، راځي، نه خوري،دوبي، توپچي . او د ښځینه نومونو او صفتونو په پای کې هم راځي، لکه: غیږچي،دوستي، ابادي، وداني او نور.

۳ ـ اوږده (ې): هغه (ې) ده چې دمخه توری یې اوږد زېر ولري. دا (ې) اوږده ویل کیږي. دا ې) لاندې باندې دوه ټکي لري. دا (ې) یو خپلواک غږدی. په زیاتو مفردو ښځینه نومونو کې د جمع کولو لپاره راځي چې په زور پای ته رسېدلې وي. لکه: شېدې، کتابچې، پاڼې، ادې، پلوشې، سپېدې او نور.

۴- هغه ساکنه(ۍ) چې د مخه توری یې زورکی ولري، زورکۍ واله (ۍ) یا د تانیث (ۍ) ورته وایي. یوازې د کلمې په پای کې راځي. لکه خولګۍ، څوکۍ او نور.

۵- مخاطبه امریه (ئ). دا (ئ) د مخاطب امریه افعالو په پای کې راځي او داسې لیکل کیږي (ئ) لکه په خورئ، وړئ او نورو کې.

((یې)) په واړو صورتونو کې کومکي توري دي.

- د پوهاند صدیق الله رښتین د پښتو ګرامر.

# پنځم لوست

## د تدریس وخت: (درې درسي ساعتونه)

| ګڼه | سرلیکونه | موضوعګانې | وخت |
| --- | --- | --- | --- |
| ۱. | **د لوست موضوع** | **میرویس نیکه** | |
| ۲. | **د زده کړې پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې** | د لوست په پای کې به زده کوونکي لاندې موخې تر لاسه کړي:<br>- د هېواد د ملي او تاریخي نومیالیو له ډلې څخه به میرویس نیکه وپېژني.<br>- د هېواد د تاریخي ویاړونو په اړه به معلومات تر لاسه کړي.<br>- د هېواد له تاریخي ویاړونو سره به د زده کوونکو مینه پیاوړې شي.<br>- په ځان کې به ښه صفتونه پیاوړي کړي.<br>- په زده کوونکو کې به د وینا او خبرو کولو وړتیاوې ځواکمنې شي.<br>- په خپلواک ډول به د متن د پای فعالیتونو د سرته رسولو وړتیا پیدا کړي. | |
| ۳. | د تدریس لاره | لوستل، پوښتنې او ځوابونه، ډله ییز فعالیتونه، یوه ځری فعالیت | |
| ۴. | د تدریس توکي | درسي کتاب، توره دړه، تباشیر، د هېواد نقشه، د میرویس نیکه عکس، کتابچه او قلم | |
| ۵. | د ارزولو لاره او میتود | شفاهي ارزونه، لیکلې ارزونه، ځارنیزه ارزونه، د ښوونکي د یاداشت کتابچې | |
| ۶. | په ټولګي کې د ښوونې او زده کړې فعالیتونه | **لومړني فعالیتونه:**<br>- سترې مه شي، حاضري، د کورنۍ دندې کتنه، | ۶ دقیقې |
| | | - **د انګېزې رامنځته کول:**<br>- پر توري دړې د ملي مشر په توګه د میرویس نیکه د نوم لیکل،<br>- د میرویس نیکه د عکس ځړول،<br>- ولې باید ملي مشران او د هغوی له ډلې څخه میرویس نیکه وپېژنو؟<br>- د ملي مشرانو ویاړنې او تاریخي اهمیت ته په ګوتې نیولو د نوي لوست پیلول. | ۴ دقیقې |

| ۱-۶ | د ښوونکي فعالیتونه | د زده‌کوونکو فعالیتونه | |
|---|---|---|---|
| | - ښوونکی متن په لوړ اواز لولي.<br>- ښوونکی د متن په لوستلو کې له زده‌کوونکو سره مرسته کوي.<br>- ښوونکی زده‌کوونکو ته د نوو کلمو معنا څرګندوي.<br>- ښوونکی زده‌کوونکو ته د میرویس نیکه د ښو او تاریخي کارونو په اړه معلومات ورکوي او د میرویس نیکه شخصیت ورپېژني.<br>- ښوونکی د ټولګي په وړاندې وینا ته زده‌کوونکي هڅوي.<br>- ښوونکی په څوساده ټکو کې د لوست لنډیز بیانوي.<br>- ښوونکی د ټولګي او د زده‌کوونکو د شمېر په پام کې نیولو سره هغوی پر ډلو او ګروپونو باندې ویشي او د هغوی ډله ییز کار څاري.<br>- ښوونکی د جرګې په ځانګړتیاوو زده‌کوونکي پوهوي او د جرګې په تمثیل کې له هغوی سره مرسته کوي.<br>- ښوونکی د متن د تمرین او فعالیتونو په اړوند له زده‌کوونکو سره مرسته کوي اوکورنۍ دنده ورکوي. | - زده‌کوونکي متن ته غوږ نیسي.<br>- زده‌کوونکي متن په چوپه خوله لولي.<br>- زده‌کوونکي د مخکیني نوبت له مخې متن په لوړ اواز لولي.<br>- زده‌کوونکي نوې کلمې یادوي او په جملو کې یې کاروي.<br>- زده‌کوونکي هڅه کوي، میرویس نیکه ځانونو ته مجسم کړي، د یووالي او د بل له واک څخه د خپل قوم د خلاصون په اړه د هغه د هلو ځلو په اړه معلومات پیدا کړي او د میرویس نیکه شخصیت وپېژني.<br>- زده‌کوونکي په خپله ژبه د متن لنډیز وایي.<br>- زده‌کوونکي په ډله ییزو فعالیتونو کې فعاله ونډه اخلي.<br>- زده‌کوونکي پوښتنو ته ځوابونه وایي.<br>- زده‌کوونکي د ټولګي په وړاندې لنډې ویناوې کوي.<br>- زده‌کوونکي په متن کې د بېلا بېلو (ی) ګانو بڼې په نښه کوي او ځان پرې پوهوي. | ۳۵ دقیقې |

**۷ – د متن د ستونزمنو برخو ځوابونه**

ورته او مشابه کلمې: خلک- ولس، زور- زیاتی، شکایت- عرض، مشران- لویان

تار و مار: له منځه وړل، پوپنا کول

* د "ورځ" په نامه شعر زده‌کوونکي پخپله لولي او د اړتیا په صورت کې ښوونکی ورسره مرسته کوي.

**۸ - ښوونکي ته د زده‌کړې سرچینې**

د ابدالیانو تر څېلو وروسته غلجیان د یو لوی ټبر په توګه په کندهار کې پاتې شول. په دوی کې تر ټولو مهم شخصیت د ښالم خان مشر زوی میرخان و چې د سلطان ملخې توخي لورنی لمسی او د پوپلزیو زوم و. ګرګین د ابدالیانو له څېلو وروسته له میرویس خان سره دوستي پیل کړه. میرویس خان یې د ښار کلانتر او خپل مشاور مقرر کړ. ښایي په دې پلمه چې ګوندې دا پښتني ځواک هم په چل ول وځپي، خو میرویس خان هر څه په ځیر څارل او له ټولو پیښو یې عبرت اخیست.

د یو مدبر قومي مشر او سیاستپوه په توګه یې د پوځي او سیاسي اوضاع له څارنې دا پایله تر لاسه کړه، چې اوس

مهال د پوځي ځواک له لارې له ګرګين او صفوي دولت څخه خپلواکي تر لاسه کول ناشونی کار دی. په ښکاره يې له دښمن سره د دوستۍ لاره خپله کړه. ګرګين هم اوضاع په ځير کلکه څارله، خو د ميرويس له ورځ په ورځ زياتيدونکي قوت او اعتبار څخه ويريده. د چارې په لټه کې و. په همدې وخت کې د کندهار ولسونه، چې د ګرګين د ظلمونو له لاسه تر پوزې راغلي وو، د ګرګين د بې فکرۍ، بې تميزۍ، بې رحمۍ او ناوړه سياست له امله نهيلي او له صفوي درباره يې مخ واوښت. له دې ستونزې څخه د خلاصون په لټه کې ميرويس خان ته د مشورې لپاره ورغلل. تر مشورې وروسته ميرويس خان صفوي شاه حسين ته يو ليک وليکه، چې په هغه کې يې د ګرګين له ظلمونو او تيريو څخه يادونه کړې وه. په دغه ليک کې د ميرويس خان په ګډون د ښار نورو مشرانو لاسليکونه کړي وو. تمه دا وه، چې صفوي دولت به د کندهار د ولس له سر څخه د ګرګين لاسونه لنډ کړي، خو صفوي فاسدې ادارې دغه شکايتونه وانه اوريدل. کله چې له ليک څخه خسرو خان خبر شو، ميرويس خان يې له کلانترۍ څخه لرې او صفوي دولت ته يې د دښمن په توګه ور وپيژاند.

ګرګين د صفوي دولت د بلنې په پلمه په غولوونکو او پستو خبرو ميرويس خان په ۱۷۰۲ زيږديز کال اصفهان ته جلا وطن کړ. له هغه سره يې ملګري وګمارل چې په لار کې ميرويس خان و څاري هغوی ته يې يو مکتوب هم ورکړی و. په مکتوب يې دا يادونه کړې وه.

"د کندهار آرامي د دې سړي په بند يتوب پورې اړه لري."

ددې کار له امله د صفوي دولت په وړاندې په غلجيانو د قهر او اور لمبې بلې شوې. په داسې حال کې چې ابداليان لاله پخوا د دولت خان په وژنې او د ابدليانو په ځورونې د صفوي دولت او ګرګين پر ضد را پاريدلي وو. ميرويس خان په اصفهان کې ډير ژر د خپلې ځيرکۍ او هوښيارتيا له امله دربار ته لاره و مونده. د ګرګين په اړه په دربار کې هم دوې ډلې وې. يوه د اعتماد الدوله وه چې د ګرګين مخالفه وه او بله د ديوان بيګي (خسروخان) ډله، چې د ګرګين ملاتړ يې کاوه. ميرويس خان د خپلې پوهې په مرسته وکړای شول دواړه ډلې تر خپل اغيز لاندې راولي. د چاپيريال د جاجونې او د غونډې له غوښتنو سره سم به يې خبرې کولې او نظر به يې ور کاوه.

د صفوي دربار په هغه غونډه کې، چې لومړي ځل په کې ميرويس خان ګډون کړی و، ديوان بيګي، خسروخان هم په کې ګډون درلود. ميرويس خان داسې حکيمانه خبرې وکړې: "دا سمه ده څه وخت چې هندي مغولو پر کندهار د ګرګين له مقررۍ واوريدل، ما تر ټولو دمخه د هغه له قوت څخه کار واخيست او د ګرګين له اشارې پرته مې د کندهار په ساتنه کې هلې ځلې وکړې." وروسته يې د ګرګين د وفادارۍ په اړه داسې څرګنده کړه:

"ګرګين هوښيار، مدير، د روښانه فکر څښتن، رعيت پال او زړور دی. د پاچا ښتينې، اصيل، بشپړ نوکر او چارواکی دی. نن ورځ، چې د کندهار د مشر په توګه مقرر شوی دی، د هند پاچا دده د پرتم، قهر او غضب له ويرې له کندهاره تمه پرې کړې ده. څومره چې د کندهار د اباديدو هيله وه، له هغې يې زيات اباد کړی دی."

په دې وخت کې ديوان بيګي د درباريانو د خولو د بندلو لپاره ګرګين داسې وغنده.

ګرګين ډير بېکاره سړی دی، هغه تر اوسه پوه نه شو چې ميرويس خان د هغه ملګری او مرستيال دی. له ده سره يې ډير ظالمانه چلن کړی دی. وروسته د ګرګين د مخالفې ډلې مشر، اعتمادالدوله هم پر ګرګين کلکې نيو کې وکړې او غونډه پای ته ورسيده. بله ورځ په هغه غونډه کې چې اعتمادالدوله په خپل استوګنځي کې جوړه کړې وه، ميرويس خان هم بلل شوی و. اعتمادالدوله ميرويس خان ته وويل، ستا په اړه له کندهاره مکتوب رارسيدلی دی. تا ددې وړګنم په خپله هغه څه ووايې چې هلته دې ليدلي دي. تاسې بايد د هغه تعصب او ظلمونو له امله خبرې ونه کړئ، چې ګرګين در باندې کړي، بلکې د حقيقت له مخې خبرې وکړې. زه يقين لرم تاسې داسې څوک نه ياست چې ګرګين ليکلي دي. ميرويس خان په دې غونډه کې دا غوره و بلله چې له حقيقته پرده پورته کړي او خپلې

موخې ته د رسیدو لاره هواره کړي. ویې ویل، څرنګه چې تاسې له ما رښتیا وپوښتل او زه، چې یو افغان یم باید رښتیا ووایم، که چیرې ګرګین لږ نور هم په کندهار کې پاتې شي، نو د کندهار ټپونه به دومره ناسور او هډونه به یې دومره یو له بله جلا شي چې رغښدل او راغونډېدل به یې ناشوني وي. ځکه تر اوسه هم په دې نه دی بریالی شوی چې خپل عسکر د حیا او پت تر اداري او دسپلین لاندې راولي. هغه وګړي هم د ګرګین له خوا سخت ځورول شوي چې هیڅ مخالفت یې نه دی کړی. مالونه یې ورنه لوټ کړي او اولادونه یې ورته له خپلو عسکرو سره ګرجستان ته لیږلي دي. ګرګین هڅه کوله، چې د خپلو عسکرو د مزو چړچو اسباب چمتو کړي. ایا ددې خطر او ویره به نه وي چې د هند له پاچا سره یو ځای شي؟ څه شی به ګرګین له دې کړو نه پر شا کړي؟ ولې پاچا ونه غوښتل چې د خپل دین کار پوه او وړ وزیران د پاچاهۍ د کارونو د ترسره کولو لپاره وټاکي چې نوی مسلمان شوی کس یې وټاکه:
تر لمر روښانه ده که دا سړی لږه موقع پیدا کړي هرومرو به د پاچاهۍ د ویجاړتیا لاملونه رامنځ ته کړي.
لنډه داچې میرویس د اصفهان په دربار کې په دې بریالي شو چې عام ذهنیت د ګرګین په خلاف کړي. میرویس بیا له درباره د حج د فریضې د ادا کولو اجازه وغوښته او حج ته ولاړ هلته یې هم د خپل ولس او هیواد د خپلواکۍ هوډونه پالل. له الله ج یې خپلواکي او د مکې معظمې له علماوو یې د خپل ملت د تسلۍ لپاره د ګرګین د له منځه وړلو فتوا وغوښته. کله چې بیرته اصفهان ته راستون شو، د صفوي دولت له خوا یو ځل بیا په ډیر درنښت د کندهار د کلانتر په توګه دیو سپارښتي مکتوب په ملتیا کندهار ته روان شو. له همدې ځایه یې د خپلواکۍ غوښتنې سمندر په څپو و. د لارې په اوږدوکې یې له ټولو افغاني قبیلو سره د لیدلوکتلو پر مهال په دې اړوند د هغوی د ملاتړ ډاډ تر لاسه کړ.
میرویس خان په ډیر درنښت په (۱۷۰۹) زیږدیز کال کندهار ته راستون شو. په کندهار کې یې تود هرکلي وشو. که څه هم ګرګین په ظاهره دده په هرکلي کې ګډون وکړ، خو په زړه کې یې د کینې دیګ له ډیره تاوه خوټیده. تل د غچ اخیستنې موقع ته سترګې په لار و، په ځانګړي ډول هغه وخت چې د اصفهان د دربار ګوابښې او سپارښتنې یې ولوستلې. ګرګین هر څه په سترګو لیدل. د میرویس خان له لیدنو کتنو بې خبره نه و. میرویس خان له ګرګین او د هغه له ورازه دیوان بیګي سره اړیکې ټینګې کړې.
په څرګنده یې له دوی سره ښه مناسبات لرل، په پټه د غلجیانو او ابدلیانو له مشرانو سره د خپلواکۍ د پاڅون په طرحه بوخت و. لومړۍ جرګه یې د کندهار د لویدیځ په شپږ میلۍ، کوکران کې وکړه. د میرویس نفوذ ورځ په ورځ زیاتیده. بله جرګه یې د کندهار د شمال لویدیځ په (۲۰) میلۍ کې په (مانجه) نومي ځای کې وکړه. په دې جرګه کې د مکې معظمې د علماوو فتوا هم مشرانو ته د پاڅون د جواز په نیت و روښودله. ددې جرګې ځینې مشران دا وو.
سیدال خان ناصر، بابوجان بابي، بهادرخان، پیرمحمد میاجي هوتک، یوسف خان هوتک، عزیزخان نورزی، ګل خان بابړ، نورخان بړیڅ، نصروخان الکوزی، یحیی خان، محمود خان، یونس خان کاکړ او نور.
د جرګې ګډون والو پریکړه او پر قران کریم لوړه وکړه، چې ګرګین او د هغه پوځیان به له منځه وړي اویو خپلواک حکومت به جوړوي. جرګې ټولو قبایلي مشرانو ته دندې وټاکلې او په دې ډول د یو ملي پاڅون لپاره هر ډول چمتوالي بشپړ شو.
په دې جرګه کې د افغان ملت د ټولو قبیلو استازیتوب څرګند و او د دموکراسۍ د یوې تمثیلي جرګې په توګه یې په متحدانه ډول میرویس خان خپل مشر وټاکه.
د ګرګین د یو ځونو د خپرولو لپاره داسې پریکړه و شوه، چې د کندهار په څنډو کې به ځینې سیمې د مالیاتو له ورکړې انکار وکړي. په دې ډول به ګرګین پوځونه په انکار کوونکو پسې ولیږي او مرکزي پوځ به یې کمزوری شي.

په دې وخت کې به يو ناڅاپه برید وشي. ګرګین به سره له پوځه له منځه يوسي. د تيرين آباد، بلوڅانو او د ارغستان اوسيدونکو د ماليې له ورکړې انکار وکړ. ګرګين له درو زرو عسکرو سره د هغوی په ټکولو پسې ووت.
ميرويس خان ته يې هم امر وکړ چې د خپلو قومي ځواکونو سره مرستې ته ورشي.
ميرويس خان پټ د بلوڅو مشرانو ته خبر ورکړ او هغه يې د غفلت له خوبه راویښ کړل. دا همغه ورځ ده چې موږ او تاسې ټاکلې وه او تاسې ژمنه را سره کړې وه. ميرويس خان له قومي ځواکونو سره ځان ارغستان ته ورساوه. له پلان سره سم يې ګرګين د ارغستان په «ده شيخ» کې د شپې له خوا يوه باغ ته راوباله. په باغ کې يې ورته ترتيب نيولی و. ټولو پښتنو مشرانو د ګرګين ښه تود هرکلی وکړ. نيمه شپه يې توري له تيکې را وايستلې او ګرګين يې له ټول پوځ سره په خپله جزا ورساوه. له سرجان ملکم، افغان سيدجمال الدين او ميليون پرته نورو مؤرخينو دا پيښه بل ډول ثبت کړې ده.
"ګرګين له ګورجيانو سره سپور را ووت. بې پروا په ميدان کې ولاړو. سپاره افغانان د ده سلام ته راغلل. کله چې را نژدې شول، د افغانانو د انتقام سمندر په څپو شو او فرعوني ګرګين خان د بلا په توپان کې غرق شو.
د "افغانستان در مسير تاريخ" ليکوال غلام محمد غبار هم دا پېښه په مجهول ډول ليکي:
در چنين وقتي او را در منزل «ده شيخ» ارغستان در باغي پذيرايي کردند و در نيمه شب ميرويس با مردان انتقامجوی شمشير در نهادند. اين کشتار چنين بود که حتی يک نفر در دشمن هم زنده نجست."
د ميرويس خان زمانې ته نږدې ليکوال، افضل خان خټک په تاريخ مرصع کې ليکي:
"... ميرويس شهنواز خان ته ځواب واستوه، چې اوس ته هم را ووځه. لېکن د شهنواز خان اکثر په مهم د بلوڅو لاړو. له لږو کسانو سره راووت. شهنواز خان يې مړ کړ. هغه په کندهار حمله وکړه.
د ګرګين له وژلو وروسته د کندهار ښار چې پهره داران يې ګورجيان او نور هم ډير په کې پراته وو، که له تدبير څخه کار اخيستل شوی نه وای، نو دې ګرجيانو کولای شول افغانانو ته دروند زيان ورواوړي. ميرويس خان د ګرګين جامې واغوستې او ملګرو يې د ګرګين د ملګرو او د ساتندويانو درې زره کسان له ښاره د باندې پرېښودل. نورو ماښام ځانونه ښارته ورسول. سره له دې پهره دارانو په دې ګومان چې د ګرګين سپرلي ده او ورپسې هم ګورجيان دي، د خپلواکۍ اتلان يې پرېښودل چې ښارته ننوځي. ننګياليو له ننوتو سره سم د دروازې او کلا په ساتندويانو يرغل وکړ. شاوخوا پټ کسان هم پر ښار راننوتل. په ښار کې پاتې ګورجيان يې هم تارو مارکړل. په دې ډول د خپلواکۍ بيرغ پورته شو. ميرويس خان د شکرانې سجده ادا کړه. سبا ته يې ولس ته يوه فصيحه او بليغه وينا وکړه. خواره واره پښتنانه يې خبر او را وبلل او ټول يې هر ډول سرښندنې ته چمتو کړل.
د ګرګين له وژلو څلور ورځې وروسته سهار وختي افغاني عسکرو يوه عسکري ډله وليدله چې د ښار پر لور را روانه وه. دا هغه ۷۰۰ ګورجي عسکرو چې د بلوڅو او کاکړو د ټکولو او ماليې را ټولو لپاره تللي وو. د افغان سرتيرو تر بريد لاندې راغلل. دوی ډير مقاومت وکړ. وروسته يې ځينې ووژل او ځينې نور يې د ګرشک او هلمند په لور وتښتيدل او فارسيانو ته يې د ګرګين د وژلو خبر ورساوه. د پارس صفوي واکمنۍ د جاني خان په نوم يو استازی د اوضاع د معلومولو لپاره کندهار ته راولیږه. دې سړي دا پيغام درلود چې د پارس د عسکرو ديره کيدل په کندهار کې و منل شي. صفوي دولت به د ګرګين له غچ اخيستنې تير شي. ميرويس خان څه وخت نوموړی استازی پر خبرو بوخت وساته. کله چې د استازي د بيرته تګ له نيت څخه خبر شو، هغه يې بندي کړ. ورپسې صفوي دولت د هرات والي، محمد خان ته دا دنده وسپارله. هغه هم يو استازی کندهار ته وليږه. دې استازي هم کټ مټ هغه بل ته ورته پيغام درلود. ميرويس خان د هرات د والي، محمد خان په درناوی چې د هغه د حج د سفر ملګری و، ددغه استازي درناوی وکړ، خو له ملي ګټو نه شو ورتيريدای. هغه سړی يې هم له ځان سره وساته. د

هرات والي چې په موضوع پوه شو، د جګړې په نیت را روان شو. میرویس خان له پنځو زروعسکرو سره د هغه مقابلې ته ور ووت. د یوې جګړې په پای کې صفوي پوځونو ماتې وکړه. په دې ترتیب د اتلسو میاشتو په اوږدوکې څلور لوی بریدونه پر کندهار وشول، خو هر ځل یې ماتې وکړه. بیا صفوي دولت د خسروخان په مشرۍ او د عباس قلي بیګ په ملګرتیا شاوخوا دېرش زره کسیز پوځ پر کندهار د برید لپاره راولیږه. خسروخان چې کله له کرمانه را تیریده، نو د دولت خان سدوزي، زوی محمدخان، چې هلته یې د یرغمل په توګه ساتلی و، د ابدالیانو د رئیس په توګه وټاکه او له ځان سره یې را روان کړ، چې ګوندې په دې ډول یو ځل بیا د ابدالیانو او غلجیانو تر منځ د نفاق اور بل کړي.
په کندهار کې لادمخه د دولت خان له خوا ملتان ته جلا وطن شوی و. د حیات سلطان زوی محمد زمان خان راغلی او د ابدالي قبیلې د رئیس په توګه په کندهار کې موجود و. محمد زمان خان اړ و چې له خپلو ملګرو سره د خسروخان او صفوي واکمنۍ ملاتړ وکړي، خو ملي اشخاص ملي ګټې پر ځانګړو ګټو لوړې ګڼي.
محمد زمان خان هم له خپل قبیلوي رقیب، عبدالله خان سره د ملي ګټو لپاره یو ځای شو. خسروخان د نورو په پرتله زیات مقاومت وکړ، کندهار یې کلابند کړ. میرویس خان چې د جنګي تکتیک له مخې ځان له کندهار دباندې ځای پر ځای کړی و، له خپلو شپاړسو زرو ځلمیانو سره یې پر خسرو خان یو مرګونی برید وکړ. خسروخان یې له دواړو خواو تر کلک برید لاندې ونیوه او د ګرګین په څېر یې په سزا ورساوه. له دې جګړې هم ډیر لږ کسان په تیښته بریالي شول. په دې ډول په ۱۷۱۲ زیږدیز کال په بشپړه توګه هوتکي واکمني پر خپلو پښو ودریده. که څه هم په ۱۷۱۲ زیږدیز کال کې د محمد زمان خان په نامه د یوه چا په مشرۍ یو بل لښکر د کندهار په لور را وخوځید، خو کندهار ته لانه و رارسیدلی چې په لار کې له منځه یوړل شو.
له هغه وروسته هوتکي واکمنۍ په خپلواکه توګه د چارو په سمبالولو پیل وکړ او دومره براسې شوه چې تر پارسه پورې یې واکمنۍ وغځوله. په دې ډول د میرویس خان او ګرګین اړیکې پای ته ورسیدې.

## شپږم لوست

### د تدریس وخت: (درې درسي ساعتونه)

| ګڼه | سرلیکونه | موضوعګانې | وخت |
|---|---|---|---|
| ۱. | **د لوست موضوع** | **کلمه، نوم او ډولونه يې** | |
| ۲. | **د زده کړې پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي موخې** | د لوست په پای کې به زده کوونکي لاندې موخې تر لاسه کړي:<br>- په کلمې، نوم او د نوم په ډولونو (خاص، عام، معنا، جنس، جمع، (مفرد او جمع) نومونو باندې به پوه شي.<br>- په ليکلو او لوستلو کې به کلمې او د هغې ډولونه په سمه توګه وکاروي.<br>- د ژبې له زده کړې سره به د زده کوونکو د مينې احساس پياوړی شي. - په خپلواک ډول به د متن د پای فعاليتونو د سرته رسولو وړتيا تر لاسه کړي.. | |
| ۳. | **د تدريس لاره** | لوستل، پوښتنې او ځوابونه، ګروپي فعاليتونه، يوه ځری فعاليت | |
| ۴. | **د تدريس توکي** | درسي کتاب، د ورځپاڼې يا بل کتاب متن، توره دړه، تباشير، چارت، قلم او کتابچه | |
| ۵. | **د ارزولو لاره او ميتود** | شفاهي ارزونه،ليکلي ارزونه، ځارنيزه ارزونه. | |
| ۶. | **په ټولګي کې د ښوونې او زده کړې فعاليتونه** | **لومړني فعاليتونه**: ستړي مه شي، حاضري، د کورنۍ دندې کتنه، | ۶ دقيقې |
| | | **د انګېزې رامنځته کول: په داسې پوښتنوکې چې سرليک ترې و مومي.**<br>- - په توري درې باندې د لوست د سرليك ليکل،<br>- له زده کوونکو څخه د کلمې او نومونو په اړه پوښتنې کول،<br>- د کلمو او د هغې د ډولونو د زده کړې ارزښت په ګوته کول، | ۴ دقيقې |

| ۱-۶ | د ښوونکي فعالیتونه | د زده‌کوونکو فعالیتونه | |
|---|---|---|---|
| | - ښوونکی متن په لوړ اواز لولي.<br>- ښوونکی په متن کې د کلمې او د هغې په ډولونو یو په یو خبرې کوي او په بېلګو کې یې کاروي،چې د زده‌کوونکو په ذهنونو کې په ښه ډول ځای ونیسي.<br>- ښوونکی د خپلواکو او ناخپلواکو کلمو په اړه زده‌کوونکو ته معلومات ورکوي.<br>- ښوونکی په سم لوستلو کې له زده‌کوونکو سره مرسته کوي.<br>- ښوونکی د ځوابونو په ویلو کې له هر زده‌کوونکي سره جلا جلا مرسته کوي،<br>- ښوونکی د وینا لپاره د ټولګي په وړاندې زده‌کوونکي هڅوي.<br>- ښوونکی زده‌کوونکي په څو ډلو باندې وېشي او هرې ډلې ته ځانګړې دنده سپاري او د هغې پایلې ګوري.<br>- ښوونکی د هرې برخې په پای کې د لوست لنډیز بیانوي.<br>په پای کې کورنۍ دنده ورکوي. | - زده‌کوونکي متن ته غوږ نیسي.<br>- زده‌کوونکي متن په چوپه خوله لولي.<br>- زده‌کوونکي د کلمې او د کلمې بېلا بېل ډولونه پېژني او په بېلګو کې یې په ښه کوي.<br>- زده‌کوونکي د خپلواکو او ناخپلواکو کلمو توپیر کولای شي.<br>- زده‌کوونکي نوم او د هغې ډولونه پېژني.<br>- زده‌کوونکي نوې کلمې یادوي او لیکي.<br>- زده‌کوونکي پوښتنو ته ځوابونه وایي،<br>- زده‌کوونکي په ډله ییزو فعالیتونو کې فعال ګډون کوي.<br>- زده‌کوونکي د نورو ټولګیوالو په وړاندې خبرې کوي.<br>- زده‌کوونکي د متن په لنډیز ځان پوهوي.<br>- زده‌کوونکي د لوست د پای په فعالیتونو کې فعاله ونډه اخلي،<br>- زده‌کوونکي په کورونو کې کورنۍ دنده سر ته رسوي. | ۳۵ دقیقې |

۷ - **د متن پوښتنو ته ځوابونه**

- کلمه یوه خپلواکه معنا لرونکی ویی دی او جمله لږ ترلږه له دوو یا تر دوو ډېرو خپلواکو کلمو څخه جوړېږي.

- ښوونکی زده‌کوونکي په خپله خوښه پر دوو ډلو ویشي. یوه ډله له بلې څخه د عام نوم او هغه بله د جنس نوم پوښتي او یو تر بله ځوابونه وایي. ښوونکی د بهیر څارنه کوي او د اړتیا پر مهال مرسته کوي.

**ښوونکي ته د زده‌کړې سرچینې**

کلمه یا مورفیم د ژبې تر ټولو کوچنی معنا لرونکی عنصر دی چې د څو آوازونو له یوځای کېدو څخه جوړېږي او له تجزیه کېدو څخه یې بې معنا ساده آوازونه لاس ته راځي.

کلمې یا مورفیمونه په لومړي سر کې پر دوو برخو یا ډولونو وېشل کېږي:

لومړی: خپلواکې کلمې یا نامقید مورفیمونه.

دویم: ناخپلواکې کلمې یا مقید مورفیمونه.

دا هره برخه له خپلو ډولونو او ځانګړنو سره درپېژنو:

لومړۍ برخه: خپلواکې کلمې یا نامقید مورفیمونه:

هغه کلمې یا مورفیمونه دي چې په ژبنی بهیر کې په آزاده او خپلواکه توګه یوه معنا ښندي، لکه: کور، غر، اوبه، ډبره او نور...

د خپلواکو کلمو ډولونه:
په عامه توګه نومونه، فعلونه او قیدونه د خپلواکو کلمو یا مورفیمونو ډولونه دي، دلته هره برخه درپېژنو:

## لومړی- نومونه

نوم: هغه کلمه ده چې بې د زمانې له ارتباط څخه د راز راز شیزونو او پدیدو څرګندونه کوي، لکه: تیږه، قلم، کتاب، ښایست، روغ او... .

د نومونو ډولونه:

نومونه پر څلورو لویو ډلو وېشل کېږي: ۱- شیز نومونه، ۲- ستاینومونه (صفتونه) ۳- شمېر نومونه (اعداد)، ۴- نومځري (ضمیرونه).

۱- شیز نومونه:

شیز نوم: هغه نوم دی چې نیغ په نېغه د یو شیز یا ښکارندې (پدیدې) نومونه او څرګندونه کوي. دا لاندې ډولونه لري:

الف: ذات نوم: چې په یو حس کېدونکي شي یا شیز پورې اړه لري، یا په بله وینا: داسې شیز نوموي چې موږ یې د خپلو حواسو په واسطه حس کولی شو، لکه: ډبره، هوا، اوبه، ښځه، سړی او نور...

ب: معنا نوم: چې په نه لمس کېدونکي شیز یا پدیدې پورې اړه لري، لکه: ښکلا، رښتیا، خوښي، عزت، مېړانه او نور...

ج: خاص نوم: چې یو ځانګړی شیز، وګړی، ځای یا کومه پدیده نوموي، لکه: کابل، ننګرهار، احمد شاه بابا، او نور...

د: عام نوم: چې داسې شیز یا پدیده نوموي چې ځانګړې یا خاصه نه وي، بلکې ډولونه او ځیلونه لري، لکه: ونه، نجلۍ، هلک، څاروی او نور.

هـ: جنس نوم: چې په یو نه شمېرېدونکي شیز یا جنس پورې اړه لري، لکه: اوبه، غنم، غوړي، واښه، سابه او نور...

و: جمع نوم: هغه نوم چې یوه ډله نوموي، لکه: غونډ، ټولنه، لښکر، ولس، قوم او نور...

ز: آواز نوم: هغه نوم چې طبیعي یا مصنوعي غږونه یا آوازونه نوموي، لکه: درز، دروز، غرب، غروب، خرپ، خروپ او نور...

د نوم اړونې (ګرداني) اړخونه:

نوم په عمومي ډول له دې لاندې دریو اړخونو څخه ګردانېږي:

الف: د جنس له مخې، ب: د عدد له مخې، د: د حالت له مخې (البته نومځري یا ضمیرونه سربېره پر دوو حالتونو د شخص له پلوه هم ګردانېږي.)

الف: د جنس له مخې: دا چې نوم نارینه دی (لکه زمری) یا ښځینه (زمری).

د جنس له مخې نوم په دوه ډوله دي:

۱- نارینه ۲- ښځینه

دلته ددې دواړو نومونو ځانګړې نښې درپېژنو:

د نارینه نوم نښې:

نارینه نوم په دې لاندې نښو پېژندل کېږي:

۱- چې وروستی آواز یې بېواک (کانسونینټ) وي، لکه: کور، هلک، هېواد، کتاب، قلم او نور...

د یادونې وړ ده چې زیاتره د خپلوانو نومونه، لکه: خور، مور، ترور... او همدارنګه ځینې نور ښځینه نومونه چې په

محاوره کې یې د پای خپلواک غږ غورځولی، لکه ستن، میچن، ځنګل، لاړ، ورځ، وربځ او نور له دې حالت څخه مستثنی' دي.

۲- ټول هغه نومونه چې د (ی= ay) په غبرګ غږ پای ته رسېدلي وي، لکه: سړی، زمری، پردی، لرګی او نور...

۳- په (و= u) خپلواک غږ پای ته رسېدلي نومونه، لکه: تالو، سالو، زردالو، چاقو، پټو، ټټو او نور...

۴- هغه نومونه چې په زور کې ( ) پای ته رسېدلي وي، لکه: تره، وراره، زړه، نیکه، پسه، لېوه او نور... (البته خوله او چاړه، ویاله، ترله، میره او نور... استثنایي حالت لري.)

۵- په لنډه (ی= i) پای ته رسېدلي نومونه، لکه: درزي، موچي، جوالي، چرسي او نور. (خپلوي او جاسوسي استثنایي حالت لري).

۶- په اوږد واو (o) پای ته رسېدلي تصغیري نومونه، لکه: سدو، جانو، کاکو، ګلو او نور...

د ښځینه نوم نښې:

۱- په (آ= a) پای ته رسېدلي نومونه، لکه: آریانا، آسیا، خندا، ژړا، بلا او نور.. (کاکا، ماما، ملا او نور استثنایي حالت لري).

۲- په (a) یا (زور) پای ته رسېدلي نومونه، لکه: لښته، پزه، ګوته، شونډه، پونده، زنه او نور...

۳- په زورکي واله (ی = ay) پای ته رسېدلي نومونه، لکه: کړکۍ، خولۍ، څپلۍ، څوکۍ، کورنۍ، تورپیکۍ او نور...

۴- په (ې = e) پای ته رسېدلي نومونه، لکه: ادې، ناوې، شیدې، مستې.

۵- په زورکي وال و (aw) پای ته رسېدلي نومونه، لکه: کټو، برو.

ب: د ګڼې (عدد) له مخې:

له ګڼې یا عدد څخه مطلب دادی چې یو نوم مفرد دی، که جمع. دلته لومړی د نارینه نوم او بیا د ښځینه نوم د جمعې نښې درپېژنو.

د نارینه نوم د جمعې نښې:

۱- (ان) وروستاړی: زیاتره هغه نومونه جمع کوي چې په بېواک غږ پای ته رسېدلي او ساکښ وي، لکه: هلک= هلکان، کب= کبان، مچ= مچان.

۲- ځینې نومونه چې په خپلواکو غږونو پای ته رسېدلي وي هم په (ان) جمع کېږي، لکه: لېوه= لېوان، کارغه= کارغان، مرغه= مرغان.

۳- (ونه) زیاتره بېواکه، بې سا، نارینه نومونه جمع کوي، لکه:

سیند= سیندونه، میز= مېزونه، ډنډ= ډنډونه، لاس= لاسونه.

۴- ځینې په (و= aw) غبرګ غږ او زورکي (a) پای ته رسېدلي نارینه نومونه هم په (ونه) جمع کېږي، لکه: پلو= پلوونه، کنډو= کنډوونه، منډو= منډونه، تره= ترونه، پسه= پسونه، زړه= زړونه.

۵- په (ای= ay) پای ته رسېدلي نومونه، ځینې په (ان) او ځینې د (ي) په وروستاړي جمع کېږي، لکه: ستوری= ستوري، ملګری= ملګري، پسرلی= پسرلي، سړی= سړي.

د (ان) بېلګې: زلمی= زلمیان، سپی= سپیان، کابلی= کابلیان، لمسی= لمسیان.

۶- ځینې یو څپهییز نومونه او صفتونه د زورکي په وروستاړي جمع کېږي، لکه: غل= غله، شین= شنه، سور= سره، اوږد= اوږده، مړ= مړه او نور...

زیاتره هغه نومونه او صفتونه هم چې د کلمې په منځ کې یې (و) وي، هغه (و) له منځه ځي (الف) ورزیاتېږي او د

زوره کې په وروستاړي جمع کېږي، لکه: پښتون= پښتانه، شپون= شپانه، موږ= ماږه، پوخ= پاخه، زوږ= زاږه.
۷- ځينې په خپلواک غږ (الف) پای ته رسېدلي نارينه نومونه په (يان) جمع کېږي، لکه: ملا= ملايان، ميرزا= ميرزايان، آشنا= آشنايان.
۸- ځينې په خپلواک غږ (الف) پای ته رسېدلي نومونه په (گان) جمع کېږي، لکه: ماما= ماماگان، کاکا= کاکاگان، بېرا= بېراگان، لالا= لالاگان.
د ښځينه نوم د جمعې ښنې:
۱- اوږده (ی) هغه ښځينه نومونه جمع کوي چې په زور يا زورکي پای ته رسېدلي وي، لکه: مڼه= مڼې، وړانگه= وړانگې، ډيوه= ډيوې، غرمه= غرمې.
۲- زوره کې واله (ې) (ay) هغه ښځينه نومونه جمع کوي چې په لنډه ياځرگنده (ي) پای ته رسېدلي وي، لکه: وداني= ودانۍ، ناروغي= ناروغۍ، نېکمرغي= نېکمرغۍ، خپلوي= خپلوۍ او نور...
۳- (وې) (we) او (گانې) وروستاړي هغه ښځينه نومونه جمع کوي چې په (الف) يا اوږده (و) پای ته رسېدلي وي، لکه: ژړا= ژړاوې، خندا= خنداوې، نڅا= نڅاوې، بلا= بلاوې، ملاگانې، خنداگانې، نڅاگانې، بلاگانې، پېشوگانې.
۴- ځينې ساکښ ښځينه نومونه چې په زورکي واله (ۍ) (ay) غبرگ غږ پای ته رسېدلي وي جمع يې په گانې کېږي، لکه: ابۍ= ابۍ گانې، څوکۍ= څوکۍ گانې، ځولۍ= ځولۍ گانې، بوډۍ= بوډۍ گانې او نور...
۵- د معنوي مونثاتو جمعې يې دوه دي، ځينې يې په (يندې) کېږي، لکه: مور= ميندې، خور= خويندې، ترور= ترينددې.
خو مور او لور په ځينو ځايونو کې په مورگانې، لورگانې او ځينې يې په لوڼې جمع کوي او نجلۍ په نجونې جمع کوي.
ج- د حالت له مخې:
له حالت څخه موخه او مقصد دادی چې نوم په جمله کې د خپل چاپېريال له مخې په کوم حالت کې واقع دی، لکه په دې لاندې جملو کې:
پلوشه راغله.
پلوشې کار وکړ.
په دې پورته دواړو جملو کې (پلوشه) فاعلي حالت لري، خو په لومړۍ جمله کې په اصلي بڼه او په دويمه کې په غير اصلي (پلوشې) په بڼه راغلې ده.
د يادونې وړ ده چې په پښتو ژبه کې د يو نوم حالت د فعلي عمليې او اداتو له مخې څرگندېږي او د حالت نښې يې پايلې يا وروستاړي دي چې په پای پورې يې نښلي.
د حالت له مخې نومونه پر دوو برخو وېشي:
الف: اوښتونکي نومونه
ب: نه اوښتونکي نومونه
دلته هره برخه په لنډه توگه درپېژنو:
الف: اوښتونکي نومونه:
۱- ټول هغه نومونه چې په (ay) (ی) غبرگ غږ پای ته رسېدلي وي، بدلون مومي:
اصلي حالت

| | |
|---|---|
| سړی | سړي |
| اغزی | اغزي |
| وری | وري |
| پردی | پردي |

۲- ټول هغه نومونه او صفتونه چې د (a) په خپلواک غږ پای ته رسېدلي وي له اصلي حالت څخه غير اصلي حالت ته بدلون مومي:

| اصلي حالت | غير اصلي حالت |
|---|---|
| تخته (تخته پاکه کړه) | تختې (له تختې څخه يې وليکه) |
| منه (منه دې وخوره) | منې (په منې موړ شوم) |
| لښته (لښته راوړه) | لښتې، دلښتې تغم |
| سترګه (سترګه مې خوږېږي) | سترګې (له سترګې مې اوښکې ځي) |

۳- زياتره هغه نومونه او صفتونه چې د کلمې د مينځ (و) يې لوېږي او (a) ورزياتېږي د کلمې په پای کې د زورکي په زياتولو سره غير اصلي حالت ته اوړي.

| اصلي حالت | نسبتي يا غير اصلي حالت |
|---|---|
| پښتون | پښتانه |
| شپون | شپانه |
| زنګون | زنګانه |
| بيلتون | بيلتانه |

۴- ځينې يو څپه ييز نومونه او صفتونه:

| اصلي حالت | غير اصلي حالت |
|---|---|
| سور | سره |
| شين | شنه |
| مل | مله |
| غل | غله |

۵- شخصي نومځري (ضميرونه):

| اصلي حالت | غير اصلي حالت |
|---|---|
| زه | ما |
| ته | تا |
| دی | ده |

۶- استفهامي نومځري (ضميرونه):

| اصلي حالت | غير اصلي حالت |
|---|---|
| څوک | چا |
| کومه | کومې |

۷- اشاري نومځري (ضميرونه)

| اصلي حالت | غير اصلي حالت |
|---|---|

نږدې دغه (a)　　　　دغه (a) دغې (e)
لېرې هغه (a)　　　　هغه (a) هغې (e)
لالېرې هوغه (a)　　　　هوغه (a) هوغوی (e)

ب: نه اووښتونکي نومونه:
په پښتو کې ځینې داسې نومونه هم شته چې په یوازې یا مفرده بڼه کې یې هېڅ حالت کې بدلون نه راځي، هغه دادي:
۱- په (الف) پای ته رسېدلي نومونه، لکه: کاکا، ماما، دادا، سبا.
۲- په (و، ي، و- u,i,o) پای ته رسېدلي نومونه، لکه: پښتو، تالو، بارخو، سالو.
۳- د (ۍ) په غبرگ غږ پای ته رسېدلي نومونه، لکه: کړکۍ، خولۍ، چوکۍ، ځپلۍ.
۴- ځینې هغه نومونه چې په (a) ختم شوي وي او د شریکو صفاتو په ډله کې دي، هم نارینه او هم ښځینه راځي، لکه: ښایسته، پیاده، ساده، ډاډه، میلمه او نور...

د نوم معنوي حالتونه:
۱- فاعلي حالت:
چې یو نوم په جمله کې فاعل واقع شي، څه کار او عمل ترې صادر شي، لکه: بریالی کار کوي، توریالی درس لولي، گلالۍ کالي پریمنځي.
په دې پورته جملو کې (بریالی، توریالی او گلالۍ) فاعلي حالت لري.
یادښت: ټول اوښتونکي نومونه که چېرې په یوه جمله کې د فاعل په توگه راشي، هغه وخت بدلون مومي چې د جملې فعل (مسند) متعدي وي او فعل په تېر مهال کې واقع شوی وي.
۲- بې واسطې مفعولي حالت:
لکه په دې لاندې مثالونو کې:

| اوسمهال | تېر مهال |
|---|---|
| احمد ماته ډوډۍ پخوي | احمد ماته ډوډۍ پخه کړه. |
| زرین پلوشې ته کتاب ورکوي | زرین پلوشې ته کتاب ورکړ. |
| شپون تاته رمه پیایي | شپانه تاته رمه وپووله. |
| شپون ماته رمه پیایي | شپانه ماته رمه وپووله |

په پورته مثالي جملو کې احمد، زرین او شپون فاعل دی، خو (ما)، (پلوشې)، (تا) د جملې بې واسطه مفعول دی.
۳- بالواسطه مفعولي حالت:
په پښتو گرامر کې دا یوه قاعده ده چې ټول اوښتونکي نومونه که په اوسمهال او تېر مهال کې د بالواسطه مفعول په توگه واقع شي په غیر اصلي بڼه استعمالېږي.
دا لاندې مثالونه وگورئ:

| اوسمهال | تېر مهال |
|---|---|
| زه تاته ډوډۍ پخوم | ما تاته ډوډۍ پخه کړه. |
| گل پاڼه ځانگې ته خط لیکي | گل پاڼې ځانگې ته خط ولیکه. |

په دې پورته مثالونو کې (تا، گل ځانگې، ما) نومونه بالواسطه مفعولي حالت لري، په اوسمهال او تېر مهال کې په غیر اصلي بڼه اووښتي دي.

له دې توضیحاتو څخه دې نتیجې ته رسېږو چې اوښتونکي نومونه که چېرې په بالواسطه مفعولي حالت کې واقع شي، په غیر اصلي بڼه استعمالېږي. همدارنګه که چېرې دغه تغیر منونکي نومونه د بې واسطه مفعول په توګه واقع شي، نو په اصلي بڼه استعمالېږي، لکه: په دې مثالونو کې:

احمد ګل پاڼه ولیدله　　اجمل ګل پاڼهویني

ایمل تنګیالی ولید　　ایمل تنګیالیویني

په دې پورته بېلګو کې (ګل پاڼه، تنګیالی) بې واسطه مفعولي حالت لري او په اصلي حالت راغلي دي.

**۴- ندایي حالت:**

که چېرې یو نوم ته غږ او یا بلنه شوې وي هغه منادې ګڼل کېږي او حالت ته یې ندایي حالت وایي.

۱- په دې حالت کې د نورو حالتونو برعکس ټول هغه نومونه چې په بېواکه غږ (کانسوننټ) ختم شوی وي، نو په ندایي حالت کې ددغو نومونو په پای کې د (a) غږ یا زور زیاتېږي لکه:

ای احمده! دلته راشه

ای هلکه! شور او ځوږ مه کوه

اې ګرانه! تاته وایم

۲- ټول هغه نومونه چې په (ی=ay) غبرګ غږ پای ته رسېدلي وي په ندایي حالت کې د هغه نوم په آخر کې هم (a) ورزیاتېږي، لکه:

ای زلمیه! ماته غوږ شه

ای توریالیه! ښوونځي ته ولاړ شه

۳- هغه نومونه چې د (a) په خپلواک غږ پای ته رسېدلي وي په ندایي حالت کې د هغه نوم په پای کې اوږده (ې=e) زیاتېږي. دا لاندې بېلګې وګورئ:

اې پېغلې! د خپلې کورنۍ پت او عزت وساته.

اې ګل پاڼې! لوښي پریمنځه.

۴- ټول معنوي مؤنثات که په ندایي حالت کې واقع شي په پای کې یې اوږده (ې) ورزیاتېږي.

لکه: اې مورې! د ډېر درناوي وړ یې.

اې خورې! ټولو ژوند چارو ته پام کوه.

اې لورې! دلته راشه.

د یادونې وړ ده چې پاتې نور نومونه هغسې چې په نورو حالتونو کې بدلون نه مومي په ندایي حالت کې هم پکې څه بدلون نه راځي.

**۵- اضافي حالت:**

هغه نوم چې یو څه ورپورې اړه ولري مضاف الیه ګڼل کېږي او اضافي حالت لري. یا په بله وینا: که یو نوم په جمله کې مضاف الیه واقع شي اویا یو څه ورپورې اړوند وي، اضافي حالت لري.

د یادونې وړ ده چې په یو اضافي ترکیب کې ړومبی (د) د اضافت توری، ورپسې مضاف الیه او وروستی نوم مضاف دی. دا لاندې بېلګې وګورئ:

د احمد قلم ښکلی دی.

د شاه اوبه سړې دي.

د باغ ګلان غوړېدلي دي.

په دې پورته بېلګو کې (احمد ، څاه ، باغ) مضاف اليه واقع شوي دي چې اضافي حالت لري او يو څه ورپورې اړوند دي.

يادونه: ټول اوښتونکي نومونه که په يوه اضافي ترکيب کې د مضاف اليه په توګه واقع شي په غير اصلي بڼه استعمالېږي، که څه هم دغه ترکيب توصيفي وي که ملکي او يا هم تشبيهي.

بېلګې:

د بېلتانه (a) شپې

د ژوندانه (a) ستونزې

د زرينې (a) بده برخه

**۲- ظرفي يا مکاني او زماني حالت:**

هغه نوم چې د يوه کار ظرف وګرځي يا پرې يو کار اړه پيدا کړي او په دې توګه بدلون ومومي.

دغه بدلون (په-کې)، (پر-باندې)، (پر_سربېره) (تر-لاندې)، (تر- پورې) (سر-تر) څخه رامنځته شوي دي، لکه په دې لاندې بېلګو کې:

په کوهي کې، پر غره باندې، تر زنې لاندې، تر غرمې پورې، تر ننګرهاره، پر اند ښنې سربېره او...

د يادونې وړ ده کوم نوم چې په دغه حالت کې خپلې بڼې ته بدلون ورکړی وي، اوښتی نوم بلل کېږي او (مغيره حالت) لري. که يې اوښتون نه وي موندلی، نو اصلي نوم ورته وايي او حالت يې (اصلي حالت) دی.

# اووم لوست

## د تدریس وخت: (درې درسي ساعتونه)

| ګڼه | سرلیکونه | موضوعګانې | وخت |
|---|---|---|---|
| ۱. | **د لوست موضوع** | **بلخ د مدنیت ځانګو** | |
| ۲. | **د زده کړې پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې** | د لوست په پای کې به زده کوونکي لاندې موخې تر لاسه کړي:<br>- د بلخ پرتاریخي مدنیت به زده کوونکي پوه شي.<br>- د هېواد له لرغونتیا سره به د زده کوونکو مینه پیدا شي.<br>- .د هېواد تاریخ به وپېژني.<br>- د هېواد له تارخي مخینې سره به د زده کوونکو مینه پیدا شي.<br>- د هېواد د ولایتونو په ډلې کې به د بلخ ولایت وپېژني.<br>- په زده کوونکو کې به د وینا او خبرو کولو ورتیاوې ځواکمنې شي.<br>- په خپلواک ډول به په کې د متن د پای فعالیتونو د سرته رسولو وړتیا پیدا شي. | |
| ۳. | **د تدریس لاره** | لوستل، پوښتنې او ځوابونه، ډله ییز فعالیتونه، یوه ځری فعالیت | |
| ۴. | **د تدریس توکي** | درسي کتاب، ورځپاڼه یا کوم بل متن، توره دړه، تباشیر، چارت، قلم او کتابچه | |
| ۵. | **د ارزولو لاره او میتود** | شفاهي ارزونه،لیکلې ارزونه، څارنیزه ارزونه دښوونکي د یاداشت په کتابچه کې ارزونه | |
| ۶. | **په ټولګي کې د ښوونې او زده کړې فعالیتونه** | **لومړني فعالیتونه:**<br>- ستړي مه شي، حاضري، د کورنۍ دندې کتنه، | ۶ دقیقې |
| | | - **د انګېزې رامنځته کول د سرلیک د موندلو اړوند پوښتنې**<br>- پر توري دړې د متن د سرلیك لیکل<br>- له زده کوونکو څخه د بلخ په اړه پوښتنې کول،<br>- د لرغونو زمانو له څرنګوالي سره د زده کوونکو د مینې د پیداکولو له لارې د هغوی د احساس راپارول.او په دې ډول د لوست پیلول. | ۴ دقیقې |

| ۱-۶ | د ښوونکي فعالیتونه | د زده‌کوونکو فعالیتونه | |
|---|---|---|---|
| | - ښوونکی متن په لوړ اواز لولي.<br>- ښوونکی په سم لوستلو کې له زده‌کوونکو سره مرسته کوي.<br>- ښوونکی د ځوابونو په ویلو کې له هر زده‌کوونکي سره جلا جلا مرسته کوي.<br>- ښوونکی د ټولګي په وړاندې د وینا لپاره زده‌کوونکي هڅوي.<br>- ښوونکی د هېواد د لرغونتیا په اړه زده‌کوونکو ته معلومات ورکوي.<br>- ښوونکی د بلخ له لرغوني مدنیت سره زده‌کوونکي اشنا کوي.<br>- ښوونکی د هېواد د تاریخي بډاینې له مخې د زده‌کوونکو غرور او احساس پیاوړی کوي.<br>- ښوونکی زده‌کوونکي پر څو ډلو وېشي او هرې ډلې ته ځانګړې دنده سپاري اوپایلې یې ګوري.<br>- ښوونکی په ساده ټکو لوست لنډوي.<br>- ښوونکی د خالي ځایونو په ډکولو کې له زده‌کوونکو سره مرسته کوي.<br>- ښوونکی د زده‌کوونکو د کورنۍ دندې لارښوونه کوي. | - زده‌کوونکي متن ته غوږ نیسي.<br>- زده‌کوونکي متن په چوپه خوله لولي.<br>- زده‌کوونکي نوې کلمې یادوي او لیکي.<br>- زده‌کوونکي نوې کلمې په جملو کې کاروي.<br>- زده‌کوونکي د ښوونکو پوښتنو ته ځوابونه وایي.<br>- زده‌کوونکي د هېواد د لرغونتیا په اړه خپل معلومات زیاتوي.<br>- زده‌کوونکي د بلخ د مدنیت په اړه نوي معلومات لاس ته راوړي.<br>- زده‌کوونکي د هېواد د ولایتونو په لړ کې د بلخ له ولایت سر ه اشناکېږي.<br>- زده‌کوونکي د ټولګي دننه په ډله ییز کار کې فعاله ونډه اخلي.<br>- زده‌کوونکي د لوست د وروستۍ برخې په فعالیتونو کې ونډه اخلي.<br>- زده‌کوونکي د ټولګي په وړاندې خبرې کوي.<br>- زده‌کوونکي د لوست لنډیز بیانوي.<br>- زده‌کوونکي په کورونو کې کورنۍ دنده سر ته رسوي. | ۳۵<br>دقیقې |

* **مترادفې کلمې**:
سمسور- حاصل خېز، دبدبه- عظمت، علم- پوهه، شان- شوکت، استوګنځی- ټاټوبی

**د متن پوښتنو ته ځوابونه**

په ټولګي کې د لوست د فعالیتونو موخه داده چې په زده‌کوونکو کې د لیکلو او لوستلو وړتیا ځواکمنه کړي. د بلخ او د هغې تاریخي مخینه او مدنیت وپېژني او همدا راز د بلخ د ولایت په هکله د زده‌کوونکو د معلوماتو پیاوړتیا او پراختیا ځواکمنه شي. ښوونکی دې د تدریس په بهیرکې پر دې ټکو زیات زور واچوي،

**ښوونکي ته د زده‌کړې سرچینې**

- بلخ، بخدي، ام البلاد ، رستم، شهنامه، باختریش، اریانا ، وارا ، دایرة المعارف،بالاحصار، برج عیاران، نهه ګنبدي جومات، ابدات

بلخ یا بخدي یا باختریش د آریایانو لومړی ټاټوبی. د ام البلاد نوم د بلخ د ښکلا او مدنیت له امله هغه ښار ته ورکړ شوی و. رستم د شهنامې اتل او قهرمان و. شهنامه د سلطان محمود غزنوي د دربار شاعر ابوالقاسم

فردوسي لیکنه ده. شهنامه شپږته زره بیتونه لري او د اتلولۍ خیالي کیسې په کې راغلي دي. شهنامه د فارسي ژبې یو وتلی اثر دی او په فارسي ژبو کې خورا ارزښت لري. د وارا کلمه د ارگ په معنا راغلې ده. دایرة المعارف هغه کتاب دی چې په کې له الف څخه تر (ی) پورې هر اړخیز معلومات راغونډ شوي دي. بالاحصار د لوړې او په یو لوړ ځای باندې جوړې شوې ودانۍ ته وایي. برج عیاران، عیار د لوړو صفتونو څښتن ته ویل کېده. په کابل کې ورته د (کاکه) او په فرانسه کې ورته (شوالیه) ویل کېده. نهه گنبدي جومات د یوې ودانۍ نوم دی چې په پخوانۍ بلخ کې یې موقعیت درلود. ابدات: تړولې ودانۍ او په لاس جوړ شوي شیان چې تاریخي ارزښت لري، د آبداتو په نامه یادیږي.

**د بلخ اداري ویش:**

د بلخ ولایت **۱۲۵۹۴** کیلو متره مربع مساحت لري او دا لاندې اداری واحدونه لري:
د مزار شریف ښار د ولایت مرکز، د نهرشاهي، کلدار، شورتېپې، دولت اباد، بلخ، چاربولک، چمتال، شولگرې، کشندې، چارکنت او ده دادي ولسوالۍ.

**د بلخ ولایت اقلیم او اب وهوا**

د بلخ ولایت شمال ته له آمو سیند سره سرحد لري. له آمو سیند څخه تر بلخه پورې پراخه ساحه، دښتې نیولې ده. په جنوبي برخه کې البرز غر، د ماربل او شادیان غرونو د آب و هوا توپیر منځ ته راوړي. تود اوړی او سوړ ژمي لري چې کله کله پکې واوره هم اوري. په اوړي کې یې د تودوخې لوړه درجه **۴۹**+ سانتیگراد ته رسیږي. د کال منځنۍ تودوخه یې **۱۷**+ درجې او کالنۍ اورښت له **۱۲۰- ۲۵۰** ملي مترو تر منځ د تغیر په حال کې وي. د سایبریا ساړه بادونه یې د ژمي هوا سړوي او اوړی یې د مرکزي آسیا دښتې د موجودیت له امله گرموي.

**د بلخ ولایت ځمکنی جوړښت**

د بلخ ولایت ځمکنی جوړښت، هوارې شگلنې دښتې، زراعتي کروندې، غونډۍ او مختلف غرونه تشکیلوي. د مزارشریف جنوب غرب لورته د البزر غر، دماربل ،شادیان او د هندوکش د غره نورې څانگې، جنوب لور ته موقعیت لري چې تر ټولو لوړه څوکه یې د مزار شریف جنوب ته **۲۷۹۴** متره لوړوالی لري. مگر د شورتېپې دښته له نورو شگلنو غونډیو سره له **۲۵۹** مترو څخه لوړې نه دي. د بلخاب سیند د هندوکش له شمالي لمنو څخه سرچینه اخلي او د شمال په لور درومي یو مرستیال یې د یوسف په نوم د دره صوف اړخه او بل مرستیال یې له بند امیر څخه د مزار په لور درومي. د شولگرې په جنوب کې سره یو ځای کیږي د کشنده وړوکی سیند هم د بلخ آب له مرستیالانو څخه شمیرل کیږي.

**د بلخ ولایت نفوس**

د بلخ ولایت نفوس د رسمي احصایې له مخې په **۱۳۵۹** کال کې **۵۹۴۲۸۰** تنه و، چې دې شمیر کې د ښار، کلو اوسیدونکې، مامورین ،کارگران او ښځې شاملې دي. په کال کې د **۳۵.۲** فیصده ډیرښت له مخې په **۱۳۷۹** کال کې **۸۲۸۲۳۲** تنو ته رسیږي چې په دې حساب په هر کیلومتره مربع کې **۲۸** تنه ژوند کوي.

**د بلخ فرهنگي، علمي او اجتماعي وضع:**

د بلخ ولایت د فرهنګي او اجتماعي وسایلو په لحاظ ډیر غني دی. پخوانی فرهنګ یې د بلخ لرغونی تمدن تشکیلوي. رابعه بلخي ، مولانا جلال الدین بلخي، د مولانا پلار سلطان العلماء بهاوالدین او ابوعلي سینا بلخي ددې سیمې د فرهنګ اساسي ستنې دي. په دې خاوره کې ډیر عالمان او شاعران روزل شوي دي. د چنګیز له یرغل نه دمخه (۵۰۰۰) مدرسې، خانقاوې او ډیر جوماتونه په دې ولایت کې موجود و، چې د ټولې مرکزي اسیا د علم طالبان دلته روزل کیدل. نن ورځ بلخ پوهنتون، تخنیکم، څو لیسې او ډیر شمېر لومړني او منځني ښوونځي لري. د بیدار ورځپاڼه یې له مهمو خپرونو څخه ده. د مزار او بلخ ودانۍ پخوا د ګنبدو په بڼه وې، چې د لمر له تودوخې څخه خوندي وې. اوس دې ودانیو عصري بڼه غوره کړیده. په کلیو کې کېپې او ګوډلې د خلکو د ژوند ځایونه تشکیلوي.د کال په لومړۍ ورځ د ګل سرخ میله او د سخي صاحب د جنډې پورته کول یوه لرغوني عنعنه ده چې هر کال پکې ترسره کیږي. بزکشي د بلخ یو ډیر مهم سپورت او عنعنوي لوبه ده چې ګاونډیو ولایتونو کې یې هم رواج موندلی دی.

**تاریخي ځایونه**:

په مجموع کې د بلخ د ښار کنډوالې یوه لویه تاریخي خزانه ده. د سخي صاحب روضه د ځایي خلکو او سیاحینو لپاره ډیره په زړه پورې ده. د بلخ د نوبهار ګنبده اوس هم د توجه وړه ده چې ارنو لاتاین یې ډیره ستاینه کړې ده.

د قره قل د پسونو روزل ،د وریښمو چنجیو روزل، وریښمینې جامې او قناویز په بلخ کې ځانګړې ارزښت لري . د غوړیو فابریکه، نساجۍ فابریکه،کشمش پاکې، سره او برښنا، د صابون جوړولو فابریکه، لاسي صنایع، غالۍ،اوبدل او نور یې ډیر شهرت لري.

مواصلاتي سیستم: د بلخ ولایت مواصلاتي او ترانسپورتي سیستم له مخې ډیر غني دی، ځکه ځمکه یې هواره ده. د مزارشریف ښار د کابل، ایبک او شبرغان په لویه لاره پروت دی. ټول ترانسپورتي وسایط د بلخ ولایت د حیرتانو له لارې تاشکند او نورو ولایتو ته له همدې ولایت څخه تیریږي.

## اتم لوست

### د تدریس وخت: (درې درسي ساعتونه)

| ګڼه | سرلیکونه | موضوعګانې | وخت |
|---|---|---|---|
| ۱. | د لوست موضوع | **لنډۍ (ولسي ادبیات)** | |
| ۲. | د زده کړې پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې | د لوست په پای کې به زده کوونکي لاندې موخې تر لاسه کړي:<br>- د ولسي ادبیاتو، دودونو، عادتونو، کرنې، پوښاک ... او د هغې پر محتوا او مضمون باندې به پوه شي.<br>- د ولسي او لیکلو ادبیاتو ترمنځ توپیر به وپېژني او هر یو به په خپل ځای کې وکاروي.<br>- د ولسي ادبیاتو په اړه به د زده کوونکو مینه پیدا شي.<br>- لنډۍ، څپه، هجا او سیلاب به وپېژني.<br>- د میوند تاریخي جګړه او د پېغلې ملالۍ زړورتیا به په زړه کړي.<br>- په متن کې به د (ی) د بېلا بېلو ډولونو په کارونه پوه شي .<br>- په خپلواک ډول به د متن د پای فعالیتونو د سرته رسولو وړتیا ومومي. | |
| ۳. | د تدریس لاره | لوستل، پوښتنې او ځوابونه، یوه ځری فعالیت، ډله ییز فعالیتونه | |
| ۴. | د تدریس توکي | درسي کتاب، توره دړه، تباشیر، چارت، قلم او کتابچه | |
| ۵. | د ارزولو لاره او میتود | شفاهي ارزونه،لیکلې ارزونه، د خارنې ارزونه،د ښوونکي د یاداشت په کتابچه کې ارزونه | |
| ۶. | په ټولګي کې د ښوونې او زده کړې فعالیتونه | **لومړني فعالیتونه:**<br>- سترې مه شي، حاضري، د کورنۍ دندې کتنه، | ۶ دقیقې |
| | | **د انګېزې رامنځته کول: د لنډۍ په اړوند پوښتنې**<br>- پر توري دړې د"لنډۍ" سرلیک لیکل،<br>- د ولسي ادبیاتو د پېژندلو د اړتیا او ارزښت په هکله پوښتنې کول،<br>- له زده کوونکو څخه د څو لنډیو په پوښتنه د لوست پیلول. | ۴ دقیقې |

| ۶-۱ | د ښوونکي فعالیتونه | د زده‌کوونکو فعالیتونه | |
|---|---|---|---|
| | - ښوونکی متن په لوړ غږ لولي.<br>- ښوونکی په سم لوستلو کې له زده‌کوونکو سره مرسته کوي.<br>- ښوونکی د ولسي ادبیاتو له بېلا بېلو بڼو سره زده‌کوونکي بلدوي،<br>- ښوونکی د لنډۍ او د هغې پر جوړښت رڼا اچوي.<br>- ښوونکی څو لنډۍ لیکي او پر څپو یې وېشي. دا کار باید ډېر تکرارکړي.<br>- ښوونکی د لنډیو پر بېلا بېلو اړخونو زده‌کوونکي پوهوي.<br>- ښوونکی د ځوابونو په ویلو کې له هر زده‌کوونکي سره جلا جلا مرسته کوي.<br>- ښوونکی زده‌کوونکي د خبرو لپاره د ټولګي په وړاندې هڅوي.<br>- ښوونکی زده‌کوونکي پر څو ډلو وېشي او هرې ډلې ته ځانګړې دنده سپاري او پایلې یې څاري او ګوري.<br>- ښوونکی د لوست لنډېز او یو شمېر مفهومونه تکراروي.<br>- ښوونکی د خالي ځایونو په ډکولو کې له زده‌کوونکو سره مرسته کوي.<br>- ښوونکی زده‌کوونکو ته د کورنۍ دندې لارښوونه کوي. | - زده‌کوونکي متن ته غوږ نیسي.<br>- زده‌کوونکي په چوپه خوله متن لولي.<br>- زده‌کوونکي د ولسي ادبیاتو په بېلا بېلو بڼو ځانونه پوهوي.<br>- زده‌کوونکي لنډۍ پېژني او پر څپو باندې یې د تجزیه کولو وړتیاوې پیاوړې کوي.<br>- زده‌کوونکي د لنډۍ جوړښت ته پام کوي او پر څپو باندې یې د ویشلو وړتیا تر لاسه کوي.<br>- زده‌کوونکي یوه لنډۍ پر څپو ویشي، چې ښه یې زده‌کړي،<br>- زده‌کوونکي نوې کلمې یادوي او لیکي.<br>- زده‌کوونکي پوښتنو ته ځوابونه وایي،<br>- زده‌کوونکي د لنډیو پر ټولنیز اړخ پوهیږي.<br>- زده‌کوونکي یو شمېر لنډۍ زده‌کوي.<br>- زده‌کوونکي د ټولګي په وړاندې د وینا کولو وړتیا مومي.<br>- زده‌کوونکي د تدریس شوي لوست اړیکې له ورځني ژوند سره ټینګوي او ارزوي یې.<br>- زده‌کوونکي د لوست لنډیز په خپله ژبه وایي.<br>- زده‌کوونکي په ډله ییز فعالیت کې فعاله ونډه اخلي.<br>- زده‌کوونکي په کورونو کې کورنۍ دنده سر ته رسوي. | ۳۵<br>دقیقې |

**د متن پوښتنوته ځوابونه**

ښوونکی ښایي د ولسي ادبیاتو (دودونه، عادتونه، کرنه، پوښاک، موسیقي) کیسې او سندرې، څپه او هجا یا سیلاب، د میوند څلی، د میوند ولسوالي، ملالۍ، د میوند اتله او داسې نورو مفهونو په اړه معلومات چمتو کړي.

**ښوونکي ته د زده‌کړې سرچینې**

لنډۍ د ولسي ادبیاتو یوه ډیره مهمه او ارزښتناکه برخه ده. انسان یو ژوندی موجود دی، د خپل ژوند د بشپړولو او هوساینې لپاره هلې ځلې کوي، تر څو ویاړلی ژوند ولري، په خپله ټولنه کې ښه ژوند وکړي. زموږ هیواد یو لرغونی هېواد دی، د زده‌کړې کچه پکې ټیټه ده. تخنیک یې وروسته پاتې دی، له دې امله کار کول او کارموندل پکې ګران دي. څوک نه شي کولای چې په خپل وطن کې د ژوند اړتیاوې پوره کړي. ځکه نو کورکلي پریږدي او پردیو هېوادونو ته په ګټه وټه پسې ځي. ځکه د پښتو په شفاهي ادبیاتو، لکه: لنډیو،کیسو او نورو کې د مسافرو ژوند ډول ډول انځور شوی دی. موږ په دې بحث کې یوازې په لنډۍ چې د ولسي ادب یوه غوره او ارزښتناکه برخه جوړوي، خبرې کوو.

لنډۍ د ولسي ادبیاتو هغه شکل او فورم دی چې لومړی نیم بیت یې نهه او وروستی یې د یارلس سیلابه دی. د لنډیو ویونکي معلوم نه وي او د بیلا بیلو ځانګړو او ټولنیزو ستونزو، خوښیو، تیري، زور، ظلم، مینې، پخلاینې، مسافرۍ، یوازیتوب، خوارۍ او غریبۍ څرګندونه پکې شوې وي، لکه: چې مسافرۍ ته د مجبورۍ په اړوند ویل شوي دي:

**څوک په رضا له ملکه نه ځي**

**یا ډیر غریب شي یا د یار له غمه ځینه**

کله چې یو مین د خپلې کوژدنې د واده د لګښتونو یا ولور پوره کولو لپاره سفر ته ملاتړي او ځنډیږي، نو کوژده شوې داسې چیغه پورته کوي.

**د بل وطن لیوان دې وخوره**

**زما په تور اوربل کې سپین ولګیدنه**

یا معشوقه د مسافر مین په یاد داسې وایي:

**سپوږمیه سر وهه راخیژه**

**زما لالی د تورو غرو منزل کوینه**

کله چې د ځینو پیغلو او میرمنو حوصله او صبر پای ته رسیږي، نو بیا داسې چیغه له خولې را وباسي.

**د سمندر ماهیان دې وخوره**

**زه دې په سپینه خوله ویده پرې ایښې یمه**

د یوه مسافر مینه دده د راتګ انتظار کوي، چې کله یې د انتظار شپې اوږدې شي، بیا داسې غږ پورته کوي:

**خدایه د قطر پاچا مړ کړې**

**پیغلې په شتو میړو کې کونډې ناستې دینه**

یا وایي:

**د مسافرو یاري مه کړئ**

**د مسافرو اسپې زین ولاړې دینه**

**مسافر مه وژنه خاونده**

**په ځنکدن کې یادوي خپل وطنونه**

یا عاشق ته خپله معشوقه د مینې داسې څرګندونه کوي:

**مینه کوم منکره نه یم**

**که شینکی خال مې د چړو په څوکو ځینه**

یا د ځوانانو د احساساتو لپاره داسې ناره کوي:

**که په وطن دې ځان قربان کړ**

**په تار د زلفو به کفن درله ګنډمه**

یا:

**توره به نه کړې نو په څه کړې**

**چې دې شیدې د پښتنې رودلې دینه**

یا خپل مین ته وایي:

**راځه راځه دیدن مې وکړه**

**په تش دیدن به دې څوک نه حلالوینه**

لنډه دا چې لنډۍ د ولسي ادبیاتو هغه فورم دی چې د ژوند په بیلابیلو برخو کې یې ویوونکو خپل غمونه او خوښۍ ددې فورم په چوکات کې مقابل لوري ته څرګندې کړې دي، دا د پښتو ادبیاتو بډایه او ارزښتناکه برخه ده.

د جرګې مجله؛ اتلسمه ګڼه، ۱۳۸۴ هـ ش کال، ۹۵ مخ

## نهم لوست

### د تدریس وخت: (درې درسي ساعتونه)

| ګڼه | سرلیکونه | موضوعګانې | وخت |
|---|---|---|---|
| ۱. | د لوست موضوع | **زده‌کړه، د ژوند اړتیا** | |
| ۲. | د زده‌کړې پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي موخې | د لوست په پای کې به زده‌کوونکي لاندې موخې تر لاسه کړي:<br><br>- له دوديزو زده‌کړو (د جوماتونو او کورونو زده‌کړې) غير رسمي او (په ښوونځيو) کې د رسمي زده‌کړو له ډولونو) سره به زده‌کوونکي اشناشي.<br>- زده‌کوونکي به د لیك لوست د زده‌کړې وړتیا تر لاسه کړي.<br>- له زده‌کړې سره به د زده‌کوونکو مينه پياوړې شي.<br>- د متن له نوو کلمو او ترکيبونوسره به زده‌کوونکي بلد شي.<br>- په زده‌کوونکو کې به د وينا او خبرو کولو وړتياوې ځواکمنې شي.<br>- په خپلواك ډول به د متن د پای فعاليتونو د سرته رسولو وړتيا ومومي. | |
| ۳. | د تدريس لاره | لوستل، ليکل، پوښتنې او ځوابونه، ډله ييز فعاليتونه، يوه ځرى فعاليت | |
| ۴. | د تدريس توکي | درسي کتاب، توره دړه، تباشير، کتابچه او قلم | |
| ۵. | د ارزونو لاره او ميتود | شفاهي ارزونه،ليکلې ارزونه، د څارنې ارزونه او د ښوونکي د ياداشت د کتابچې ارزونه | |
| ۶. | په ټولګي کې د ښوونې او زده‌کړې فعاليتونه | **لومړنی فعاليتونه:**<br>- ستړي مه شي، حاضري، د کورنۍ دندې کتنه، | ۶ دقيقې |
| | | - **د انګېزې رامنځته کول: دژوند داړتيا په اړه څو پوښتنې**<br>- له تېر لوست څخه څو پوښتنې، :<br>- پر توري دړې د زده‌کړې د سرليك ليکل او له زده‌کوونکو څخه د هغې د ارزښت په هکله په يو څو پوښتنو د لوست پيلول.. | ۴ دقيقې |

| ۱-۶ | د ښوونکي فعالیتونه | د زده‌کوونکو فعالیتونه | |
|---|---|---|---|
| | - ښوونکی متن په لوړ اواز لولي.<br>- ښوونکی د متن په لوستلو کې له زده‌کوونکو سره مرسته کوي.<br>- ښوونکی په هېواد کې د زده‌کړې پر بهیر زده‌کوونکي پوهوي.<br>- ښوونکی د غیر رسمي او رسمي زده‌کړو توپیر په ګوته او د رسمي زده‌کړو پر ارزښت او اهمیت زده‌کوونکي پوهوي.<br>- ښوونکی زده‌کوونکو ته د نوو کلمو معنا څرګندوي.<br>- ښوونکی زده‌کوونکي د ټولګي په وړاندې وینا ته هڅوي.<br>- ښوونکی په څوساده ټکو کې د لوست لنډیز بیانوي.<br>- ښوونکی د ټولګي او زده‌کوونکو د شمېر په پام کې نیولو سره هغوی پر ډلو او ګروپونو وېشي او د هغوی ګروپي کار څاري.<br>- ښوونکی د متن د تمرین او فعالیتونو په حلولو کې له زده‌کوونکو سره مرسته کوي.<br>- ښوونکی د کورنۍ دندې لارښوونه کوي. | - زده‌کوونکي متن ته غوږ نیسي.<br>- زده‌کوونکي په چوپه خوله متن لولي.<br>- زده‌کوونکي د زده‌کړې پر مفهوم ځانونه پوهوي.<br>- زده‌کوونکي هڅه کوي په هېواد کې د زده‌کړې بهیر وپېژني.<br>- زده‌کوونکي د رسمي او غیر رسمي زده‌کړو پر توپېر او د رسمي زده‌کړو پر ارزښت پوهېږي.<br>- زده‌کوونکي نوې کلمې یادوي او لیکي یې.<br>- زده‌کوونکي په ډله ییزو فعالیتونو کې فعاله ونډه اخلي.<br>- زده‌کوونکي پوښتنو ته ځوابونه وایي او په جملو کې نوې کلمې کاروي.<br>- زده‌کوونکي د لوست پر لنډیز ځانونه پوهوي.<br>- زده‌کوونکي د ټولګي په وړاندې وینا کې ونډه اخلي.<br>- زده‌کوونکي په کورونو کې کورنۍ دندې سر ته رسوي. | ۳۵ دقیقې |

**د متن پوښتنو ته ځوابونه**

ښوونکی دې هڅه وکړي، چې په افغانستان کې له رسمي زده‌کړو څخه دمخه په دودیزو زده‌کړو رڼا واچوي. همدا راز د رسمي زده‌کړو بهیر او د هغو ارزښتونه دې زده‌کوونکوته روښانه کړي.

**ښوونکي ته لارښوونې او د زده‌کړې سرچینې**

زده‌کړه د ژوند اړتیاده، مخکې له دې چې د ښوونې اوروزنې عمومي موخې په ګوته کړو، ښه به دا وي چې لومړی ښوونه، روزنه په لنډه توګه د روپېژنو:

ښوونه او روزنه په فزیکي (جسماني) ، روحي، ټولنیز، ذهني او اخلاقي لحاظ د انسان له ودې او انکشاف څخه عبارت ده، چې د هغې په وسیله وکړای شي مهارتونه زده‌کړي، خپل کلتور وپېژني، کورني مسوولیتونه په غاړه واخلي، خپل ځان ته مسلک وټاکي او بالاخره وکړاي شي چې د ټولنې یو فعال او ګټور غړی شي.

پورتنۍ پېژندنې ته په پاملرنې سره د زده‌کړې د بیلابیلو دورو تدریسي مضامین باید داسې طرح شي چې زده‌کوونکي وکړای شي، پورتني یادشوي مفاهیم په ښه او مناسبه توګه سرته ورسوي.

په عام ډول زده‌کړه په دې بیلابیلو پړاوونو کې تر سره کېږي. ۱- لومړنیو ابتدایي زده‌کړو دوره، ۲- د ثانوي

زده‌کړو دوره ۳- د لوړو زده‌کړو دوره. موږ په خپله ښوونځي کې د هرې دورې د ښوونې او روزنې عامو هدفونو ته یوه لنډه اوځغلنده کتنه کوو.

۱- **دلومړنۍ یا ابتدايي دورې د ښوونې او روزنې هدفونه**: د لومړنۍ دورې ښوونه او روزنه په هره ټولنه کې ډیره مهمه او د پاملرنې وړشمیرل کیږي، ځکه د ښوونې او روزنې هغه دوره ده ، چې پکې د انسان فکري، جسمي، اخلاقي او د ټولنیزې سمې ودې بنسټ ایښودل کیږي. له همدې امله دا دوره د ښوونې اوروزنې د پوهانو، ښوونکو اوروزونکو د زیاتې پاملرنې وړگرځیدلې ده، څرگنده ده چې د لومړنۍ دورې د زده‌کوونکو د هر اړخیزې و دې لپاره د ښوونې او روزنې طرحې د ټولنې د علمي او مسلکي کسانو ډیر غور، دقت او زیاتو پرله پسې هڅونو ته اړتیا لري، چې په هغو طرحو کې د زده‌کوونکو ټولو ذهني او جسمي اړتیاوو ته ځاي ورکړل شي. دیادونې وړده چې د لومړۍ دورې په ښوونه اوروزنه کې د عمر او وخت له غوښتنو سره سم د ښوونې او روزنې عمومي اهداف لږ و ډیر بدلون مومي. ز موږ په اسلامي افغاني ټولنه کې د لومړۍ دورې د ښوونې اوروزنې یو شمیر عام هدفونه په لنډ ډول درپیژنو:

۱- د اسلام د ارکانو او ارزښتونو په هکله زده‌کړه.

۲- د اسلامي اخلاقو او ثقافت په هکله د پوهې وده.

۳- د افهام او تفهیم (شفاهي او تحریري) و دې په هکله زده‌کړه.

۴- د روغتیا او هغه څه په هکله چې په جسمي روغتیا او جسمي ذهني وده کې مرسته کوي، د پوهې او معلوماتو تر لاسه کول.

۵- د چاپیریال اوشاوخوا موادو او شیانو په هکله معلومات تر لاسه کول.

۶- د طبیعي، زراعتي، صنعتي پیدا وارو او تولیداتو په هکله د پوهې او معلوماتو تر لاسه کول.

۷- دوخت او په لاس کې لرلو موادو څخه د ښې او سمې استفادې او چارو په هکله پوهه او معلومات تر لاسه کول.

۸- په مادي او معنوي ژوند کې د کار او دهغه د اهمیت په باب پوهه تر لاسه کول.

۹- د اسلامي او ملي یووالي د احساساتو وده او پیاوړي کېدل.

۱۰- د کورنۍ، ښوونځي اوټولنې د یو فعال غړي په توگه د مرستې او همکارۍ او احساس پیاوړي کیدل.

۱۱- د دوستۍ، ملگرتیا او همکارۍ د احساس پیاوړتیا.

۱۲-د خدایﷻ د ورکړې فطري استقرار او اړتیا له مخې د پرمختگ د معیارونو پرمختیا.

۱۳- د غوره او نیکو اخلاقو پیاوړتیا.

۱۴- د خپل هیواد د تاریخ او جغرافیاوي وضعې په باب پوهه او معلومات تر لاسه کول.

۱۵- د خپلوگاونډیو هېوادو او نړۍ په باره کې معلومات تر لاسه کول.

۱۶- د لیکلو او لوستلو مهارت زده‌کول.

۱۷- په شمیر او حساب پوهیدل.

۱۸- دا او داسې نور ډیر هدفونه چې د ښوونې او روزنې د لومړۍ د ورې له پیل څخه تر پایه پورې د ښوونکو له خوا زده‌کوونکو ته د بیلابیلو مضمونونو د تدریس په ترځ کې تر سره کیږي او زده‌کوونکي ددې وړگرځي چې د راتلونکي ثانوي دورې د زده‌کړې لپاره ځانونه چمتو کړي.

په ثانوي دوره کې د ښوونې اوروزنې عام هدفونه:د ثانوي دورې ښوونه اوروزنه له یوې خوا بیلابیلو اړخونوکې د زده‌کوونکو د پوهې او معلوماتو سطحه لوړوي، چې د هغې په رڼا کې خپل ځان او ټولنه نیکمرغه کړي. د ثانوي زده‌کړې په دوره کې د مسلکي زده‌کړو لپاره د زده‌کوونکو استعداد و نه څرگندیږي. همدارنگه ثانوي زده‌کړه زده‌کوونکو ته توان او ځواک ورکوي چې د ژوندانه په بیلابیلو مادي او معنوي اړخونوکې د بري لپاره له کومو لارو

چارو کار واخلي. په همدې دوره کې پرخپل نفس باندې د اعتماد ځواک او روحیه را څرګندیږي او زده‌کوونکي د خپل ژوند لوری ټاکي او دیوه نیکمرغه ژوند لپاره هوډمن کیږي. په ټولنه کې د ثانوي دورې د زده‌کړې ځیني عام هدفونه دادي:

۱- د اسلام او اسلامي ثقافت په اړوند د قرآن عظیم الشان او حدیثو په رڼاکې د پوهې او معلوماتو زیاتوالی.

۲- د ځان او جهان پیژندنې په لاره کې د پوهې او معلوماتو تر لاسه کول.

۳- د وطن پالنې او انسان پالنې احساس وده او خلکو ته د خدمت د روحیې پیاوړتیا.

۴- په مجموعي توګه او د اجتماعي او سیاسي علومو په اړه د پوهې زیاتول.

۵- په لاس کې له شتو موادو څخه د کار اخیستنې لپاره د سالمو مهارتونو زیاتوالي.

۶- د خپل ذهني او فطري استعداد په پام کې نیولو سره د بیلابیلو مسلکونو په اړه د معلوماتو زیاتول.

۷- د ځانګړو استعدادونو د تشخیص، څرګندونې او د ګټورو اغیزمنو میتودونو کارونې لپاره د پوهې او معلوماتو زیاتول.

۸-د عمر، وخت او ځواک (توان) څخه د لازمې او سالمې استفادې لپاره د پوهې وده او پیاوړتیا.

۹- د غوره او نیکو کارونو د سرته رسولو لپاره د حوصلې او زغم د ځواک وده او پیاوړتیا.

۱۰- د کورني او بهرني ( نړیوال) سیاست په هکله د پوهې او معلوماتو زیاتول.

۱۱- د عادلانه قضاوت د روحیې وده.

۱۲- له هرډول تبعیض او تعصب څخه د ځان ژغورنې د ځواک پیاوړي کول.

۱۳- له خپلو شخصي ګټو څخه د ملي او ټولنیزو ګټو د غوره بللو د روحیې غبنتلي کول.

۱۴- په زده‌کوونکو کې د هغې روحیې وده او پیاوړتیا چې د خپلو ناوړه جنسي غوښتنو او خواهشاتو په وړاندې د عقل او منطق قوه پیاوړې کړي.

۱۵- د هغه ځواک وده او پیاوړتیا چې ټولنیز پرابلمونه په ګوته او د حل اغیز منه لار ورته پیدا کړي.

۱۶- په زده‌کوونکو کې د هغه ځواک وده، چې ډیر واوري اولږ ووایي.

۱۷- دهغه ځواک او احساس وده چې هر څه پر غور وګوري او عالمانه او هوښیارانه عمل وکړي.

۱۸- د پوهې او معلوماتو تر لاسه کولو لپاره د ژورې مطالعې د ځواک وده او پیاوړتیا.

داسي نور هغه اهداف دي چې د ثانوي دورې د زده‌کړې په دوره کې زده‌کوونکو ته د بیلابیلو مضامینو د تدریس او ټولنیز سلوک له لارې تر سره کیږي او هغوی په راتلونکي کې د لوړو زده‌کړو لپاره چمتو کوي.

**۳- د لوړو او مسلکي زده‌کړو عام هدفونه**

د لوړو او مسلکي زده‌کړو عامیدل په هره ټولنه کې د پرمختللي او نیکمرغه ژوند او ټولنې د جوړونې په منظور تر سره کیږي. دا ډول زده‌کړې ټولنې ته د مسلکي او علمي کادرونو د روزنې دنده پر غاړه لري، چې د ټولنې ریښتنې او ارزښتناکه پانګه ګڼل کیږي. د لوړو او مسلکي زده‌کړو د عامولو او پراخولو په نتیجه کې کیداي شي، ټولنه د عامه سوکالۍ پر لور لاړه شي. هر څومره چې د ټولنې د علمي او مسلکي کادرونو د روزنې لپاره اغیز منې هڅې زیاتیږي، په هغه اندازه ټولنه د نیکمرغۍ او سوکالۍ په لور چټک ګامونه اخلي. پورتنیو یادونو ته په پاملرنې سره په خپله ټولنه کې د لوړو او مسلکي زده‌کړو ځیني عام هدفونه په لنډه توګه درپیژنو.

۱- د ایمان اوعقیدې په رڼاکې د غوره تفکر، وینا او عقل پیاوړتیا.

۲- د یوه ځانګړي مسلک په اړوند د علمي او مسلکي پوهې لوړول.

۳- دورځې د مهمو مسایلو په اړوند د پوهې او معلوماتو زیاتول.

۴- د ژوند د بیلابیلو اړخونو په هکله د پوهې لوړول.

۵- خلکو او ټولنې ته د خدمت کولو د هغې روحیې وده او پراختیا چې له هرډول تعصب او تبعیض څخه پاکه وي.

۶- له خپل مسلک سره د زياتې مينې او احساس د کچې لوړول.
۷- له ټولو مسايلو سره په پراخ نظر او علمي ډول بر خورد کولو د روحيې لوړول.
۸- د هغه احساس لوړول چې خپلې نفسي غوښتنې کنترول کړي.
۹- د هغې روحيې پياوړي کول چې له شخصي ګټو څخه ملي ګټو ته زيات ارزښت ورکوي.
۱۰- د حلم، زغم او ايثار د روحيې پياوړي کول.
۱۱- د هغې روحيې وده او پراختيا شخص دې ته وهڅوي چې د ټولنې د يوه اغيز من او فعال غړي په توګه عمل وکړي.
داسې نور اهداف د لوړو او مسلکی زده‌کړو په دوره کې نغښتې وي چې د بيلابيلو مضمونونو تدريس د محصلينو د ځانګړو مطالعاتو او خپل منځي سلوک، له علمي او اکاديميک چاپيريال څخه تر لاسه کيږي. د زده‌کړې د دغه دورې په پای کې شخص په خپله اړونده څانګه او مسلک کې د زياتو معلوماتو او پوهې د برخمن په توګه ټولنې ته د خدمت لپاره وړاندې کيږي.
د صبا مجله، د ۱۹۹۹ کال لومړۍ ګڼه

# لسم لوست

## د تدریس وخت: (درې درسي ساعتونه)

| گڼه | سرلیکونه | موضوعګانې | وخت |
|---|---|---|---|
| ۱. | **د لوست موضوع** | **لیک او اړتیا یې** | |
| ۲. | **د زده کړې موخې، مهارتي او ذهنیتي موخې** | د لوست په پای کې به زده کوونکي لاندې موخې تر لاسه کړي:<br>- د لیك پر ارزښت او اړتیا به زده کوونکي پوه شي.<br>- د سم لیك په هکله به د زده کوونکو د پوهې کچه لوړه شي.<br>- په زده کوونکو کې به له سمې لیکنې سره مینه پیدا شي.<br>- په زده کوونکو کې به د بېلابېلو متنونو لوستل پیاوړي شي.<br>- له غلطۍ پرته به یې د لیکلو وړتیا ځواکمنه شي.<br>- په خپلواك ډول به د متن د پای فعالیتونو د سرته رسولو وړتیا ومومي. | |
| ۳. | **د تدریس لاره** | لوستل، پوښتنې او ځوابونه، یوه ځری فعالیت، ډله ییز کار | |
| ۴. | **د تدریس توکي** | درسي کتاب، د کتاب یا ورځپاڼې یو متن، مجله، توره دړه، تباشیر، چارت، کتابچه او قلم | |
| ۵. | **د ارزولو لاره او میتود** | شفاهي ارزونه،لیکلي ارزونه، د ځارنې ارزونه د ښوونکي د یاداشت کتابچه | |
| ۶. | **په ټولګي کې د ښوونې او زده کړې فعالیتونه** | **لومړني فعالیتونه**<br>- ستړي مه شي، حاضري، د کورنۍ دندې کتنه، | ۶ دقیقې |
| | | **د انګېزې رامنځته کول: د پوښتنو په ترڅ د سرلیک پیداکول.**<br>- په توري دړې د موضوع د سرلیك (د لیک ارزښت) لیکل،<br>له زده کوونکوڅخه د سم لیك او املا په هکله د یو څو پوښتنو له لارې د لوست پیلول | ۴ دقیقې |

| ۱-۶ | د ښوونکي فعالیتونه | د زده‌کوونکو فعالیتونه | |
|---|---|---|---|
| | - ښوونکی متن په لوړ اواز لولي،<br>- ښوونکی په سمه لوستنه کې له هر زده‌کوونکي سره په جلا ډول مرسته کوي،<br>- ښوونکی د لیك پر ارزښت زده‌کوونکي پوهوي.<br>- ښوونکی د ناسم لیك عیبونه بیانوي،<br>- ښوونکی په ځوابونو کې له زده‌کوونکوسره مرسته کوي.<br>- ښوونکی د ټولګي په وړاندې د وینا لپاره زده‌کوونکي هڅوي.<br>- ښوونکی زده‌کوونکي پر څو ډلو وېشي، هرې ډلې ته ځانګړې دنده سپاري او د هغې پایلې ګوري.<br>- ښوونکی له زده‌کوونکو سره د خالي ځایونو په ډکولو کې مرسته کوي.<br>- ښوونکی د کورنۍ دندې لارښوونه کوي. | - زده‌کوونکي متن ته غوږ نیسي.<br>- زده‌کوونکي په چوپه خوله متن لولي.<br>- زده‌کوونکي د لیك پر ارزښت ځانونه پوهوي.<br>- زده‌کوونکي د خبرو او لیك پر توپیر ځانونه پوهوي.<br>- زده‌کوونکي د ټولګي په وړاندې د خبرو کولو مهارت پیاوړی کوي.<br>- زده‌کوونکي نوې کلمې یادوي او په سموجملو کې یې کاروي.<br>- زده‌کوونکي په ساده ژبه د متن لنډیز بیانوي.<br>- زده‌کوونکي پوښتنو ته ځوابونه وایي.<br>- زده‌کوونکي په ډله ییز فعالیت کې فعاله ونډه اخلي.<br>- زده‌کوونکي په کورونو کې کورنۍ دنده سر ته رسوي. | ۳۵ دقیقې |

**د متن د پوښتنو ځوابونه**:

ښوونکي د لیک پر ارزښت خبرې کوي. زده‌کوونکو ته څرګندوي چې د خلکو د خبرو او لیک تر منځ توپیر شته. څوک نشي کولای د خلکو خبرې اصلاح کړي، خو د لیک اصلاح او سموالي ته باید زیات پام واړول شي.

**ښوونکي ته د زده‌کړې سرچینې**:

د لیک د اړتیا په باب باید د لیک د لومړنۍ بڼې او شکل یادونه وکړو.

لرغون پیژندونکي په دې باور دي، چې احتمالاً لومړنیو انسانانو د خپلو کیسو او تاریخ د سمبالولو په موخه د لیک انځوریزي ښې کارولي دي.

په لسګونو زره کاله کیږي چې د انسانانو تر منځ د اړیکو او یو بل ته د ساده پیغامو د لیږلو لپاره یو ډول طرحه شوې علامې او بڼې کارول کیږي. لیک او الفبې اوږد تاریخ لري. لیک په ورو ورو له ساده نه پیچلې او پرمخ تللې بڼه نیولي ده، تر هغه ځایه چې په انسانانو پورې اړه لري، خط او لیکدودلومړی په «رودان» یا د بین النهرین دوو رودو نو تر منځ «فرات او دجلې» په غاړو کې پیل شوی دی. دغه سیمه چې له فارس خلیج څخه تر بغداد پورې پرته ده، له میلاد څخه درې زره کاله وړاندې په دوو برخو یعنې په سهیل کې سومر Summer او په شمال کې قلده Akalda باندې ویشل کیده.

د یادونې وړ ده چې سومریانو او کلدانیانو په یوه واحده جغرافیایي سیمه کې په ګډه ژوند کاوه. خو د ژبو له اړخه یې ډیر توپیر درلود. لکه د جاپاني او الماني ژبو توپیر دغه دواړو پرمختللو ټولنو په وړو ټولنو د بابل Babylon په څیر په لویو ښارونو کې د ټولواکانو وخت دا ښیي چې په لومړیو سومري لاسي لوحو کې چې دا وروک Urak له لوی معبد څخه تر لاسه شوي دي، د لیکنې لومړني اسناد بلل کېږي. له دې څخه دا پایله په لاس راځي چې لومړنی

لیکنی عدد د کروندگرو د حسابي مسايلو او راکړې ورکړې لپاره کارول شوي دي. نوري لوحې د لاګاش په معبد کې کشف شوي دي. دا ښيي چې د مصريانو په ټولنيز جوړښت کې ۱۸ ډوډۍ پخوونکو (نانوايانو)، ۱۳ شراب جوړوونکو، ۷۰ مريانو او يو پښن شتون درلود.
ځيني اسناد ښرګندوي چې په سومريانو کې نه يوازې د نغدو پيسو کارول دود و، بلکې پيسې هم په اجاره ورکول کيدې. همدارنګه په سومري مدرسو کې موندل شوې لوحې دا ښرګندوي چې په ميخي الفبې څه ډول ليک لوست زده کېده. ددې ډول ميخي ليک لومړۍ کتيبې، د کارپوهانو په عقيده د يادښت يو ډول ګڼل کيږي.

# يوولسم لوست

## د تدريس وخت: (درې درسي ساعتونه)

| گڼه | سرليکونه | موضوعگانې | وخت |
|---|---|---|---|
| ۱. | د لوست موضوع | ورځپاڼه | |
| ۲. | د زده کړې پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي موخې | د لوست په پای کې به زده کوونکي لاندې موخې تر لاسه کړي:<br>- د رسنيو پر ارزښت به پوه شي.<br>- له رسنيو سره به د زده کوونکو مينه پيداشي.<br>-.زده کوونکي به د رسنيو او د هغې په ډلې کې له مهالنيو خپرونو سره بلد شي.<br>- په زده کوونکو کې به د تخليقي ليکنو ورتيا رامنځته شي.<br>- زده کوونکي به د رسنيو له تاريخ سره بلد شي.<br>- د بېلا بېلو رسنيو پر توپير به پوه شي.<br>- د زده کوونکو د پوهې کچه به لوړه شي.<br>- په خپلواك ډول به د متن د پای فعاليتونو د سرته رسولو وړتيا ومومي. | |
| ۳. | د تدريس لاره | لوستل، پوښتنې او ځوابونه، گروپي فعاليتونه، يوه ځری فعاليت | |
| ۴. | د تدريس توکي | درسي کتاب، ورځپاڼه، مجله يا کوم بل متن، توره دړه، تباشير، چارت، کتابچه او قلم | |
| ۵. | د ارزولو لاره او ميتود | شفاهي ارزونه،ليکلي ارزونه، د ځارنې ارزونه دښوونکي د ياداشت کتابچه | |
| ۶. | په ټولگي کې د ښوونې او زده کړې فعاليتونه | **لومړني فعاليتونه:**<br>ستړي مه شي، حاضري، د کورنۍ دندې کتنه، | ۶ دقيقې |
| | | **د انگيزې رامنځته کول:**<br>يوه، دوه ورځپاڼې دې د ټولگي په وړاندې وځړول شي،<br>د ورځپاڼې کلمه دې په توره دړه وليکل شي او د هغې په اړوند دې له زده کوونکو سره خبرې اترې وشي. | ۴ دقيقې |

| ۱-۶ | د ښوونکي فعالیتونه | د زده‌کوونکو فعالیتونه | |
|---|---|---|---|
| | - ښوونکی متن په لوړ غږ لولي.<br>- ښوونکی د متن په لوستلو کې له زده‌کوونکو سره مرسته کوي.<br>- ښوونکی د رسنیو په اړه زده‌کوونکو ته معلومات ورکوي.<br>- ښوونکی د رسنیو له بېلابېلو ډولونو (ورځپاڼې، مجلې، میاشتنۍ، مهالنۍ، تلویزیون، رادیو، فلم، انټرنیټ او نورو سره) زده‌کوونکي بلدوي.<br>- ښوونکی د پورته رسنیو د ارزښت په اړه یو په یو خبرې کوي او د هغوی اهمیت څرګندوي.<br>- ښوونکی زده‌کوونکو ته د نوو کلمو معناګانې څرګندوي.<br>- ښوونکی د ټولګي په وړاندې وینا ته زده‌کوونکي هڅوي.<br>- ښوونکی په څوساده ټکو کې د لوست لنډیز بیانوي.<br>- ښوونکی د ټولګي او زده‌کوونکو د شمېر په پام کې نیولو سره زده‌کوونکي په ډلو او ګروپونو باندې وېشي او د هغوی ګروپي کار څاري.<br>- ښوونکی د متن د تمرین او فعالیتونو په اړه له زده‌کوونکو سره مرسته کوي او بیا کورنۍ دنده ورکوي. | - متن ته غوږ نیول.<br>- په چوپه خوله د متن لوستل.<br>- د رسنیو د ډولونو پېژندل.<br>- د هېواد د څو ورځپاڼو نومونو اخیستل او د هغې په هکله د معلوماتو بیانول.<br>- د ورځپاڼې اوونیزې، مجلې، درې میاشتنۍ او کلنۍ په هکله د پوهې لاسته راوړل.<br>- د رادیوي او تلویزیوني خپرونو په اړه د نظر ورکول او د هغوی د بېلابېلو پروګرامونو په هکله د پوهې تر لاسه کول.<br>- په دې پوهېدل چې ایا د رادیو او تلویزیون هر پروګرام د لیدلو او اورېدلو وړ دی او که نه،<br>- د نوو کلمو یادول، لیکل او په جملو کې د هغوی کارول،<br>- پوښتنو ته ځوابونه ویل.<br>- د لوست پر لنډیز ځان پوهول.<br>_ په ډله ییز فعالیت کې فعاله ونډه اخیستل.<br>- د متن د وروستۍ برخې په فعالیتونو کې ونډه اخیستل.<br>- په کورونو کې د کورنۍ‌دندې سر ته رسول. | ۳۵<br>دقیقې |

**دمتن د پوښتنو ځوابونه**

د لوست په وروستۍ برخه کې یوجدول راغلی دی. زده‌کوونکي دې نوموړی جدول په بله پاڼه کې نقل کړي. په کتاب کې دې خط نه کوي. د پوهنې کلمه په څلورمه لیکه کې د (ب) او (هـ) ترمنځ پرته ده. زده‌کوونکي دې هغه پیدا او د خپلې خوښې په رنګ دې رنګه کړي.

چاپي خپرونې، لکه: ورځپاڼې، مجلې، کتابونه، اعلانونه، لوحې او نور...
صوتي خپرونې، لکه: رادیو او انځوریزې یا تصویري خپرونې، لکه: سینما ، تیاتر، تلویزیون، کمپیوټر، انټرنېټ...
د کتاب، مجلې او ورځپاڼې توپیر: ورځپاڼه او مجله مهالنۍ خپرونې دي، ورځپاڼه د یوې ورځې په تېرېدو

زړېږي، مجله به یا میاشتنۍ وي، یا به دوې میاشتنۍ او درې... میاشتنۍ وي، چې دا هم د وخت په تېرېدو سره زړېږي. کتاب خپل ارزښت له لاسه نه ورکوي او تل د لوستلو او مطالعې وړ وي.

**ښوونکي ته د زده‌کړې سرچينې**

دګوتنبرګ په وسیله د چاپ ماشین له اختراع وروسته په نړۍ کې د چاپ او خپرونو په باب یو لوی تحول او بدلون رامنځته شو او ورو ورو ګام په ګام چاپ او خپرونو پراختیا کوله. له بشري تمدن سره اوږه په اوږه پر مخ روان و. د نوې دورې تخنیک د هغې په بشپړتیا او تکامل کې ارزښناک رول درلود. د بشري ټولنې دغه لومړنۍ او اړینه اړتیا په چټکۍ له اروپا څخه لرې او نژدې هیوادونو ته انتقال شوه. هر هیواد چې مخکې له نورو را بیدار شو، له هر څه مخکې یې د چاپ ماشین په حرکت راوست.

په ختیځ کې او په ځانګړې ډول په ترکیه، ایران، هندوستان او د افغانستان په نورو ګاونډیو هیوادونو کې د چاپ ماشین په حرکت پیل وکړ. په داسې حال کې چې د چاپ فن په ۱۷ او ۱۸ مه پیړۍ په هند، ایران او ماوراءالنهر کې د بشپړتیا پړاوونه وهل. په ډیر افسوس سره افغانستان د نن په شان، چې الکترونیکي او کمپیوټري اطلاعاتو د بشریت په شخصي او ورځنیو چاروکې ډیر نفوذ او اغیزه کړې ده، منظم اداري سیستم او مرکزي اداره نه درلوده. ملوک الطوایفي او خانخانیو، پلار واکي د خلکو ترمنځ واکمنه وه.

ددې زمینه برابره نه وه چې د علم او فرهنګ د پرمختیا وسایل هیواد ته راوړل شي. که څه هم احمد شاه ابدالي په دې بریالی شو چې د یوې مرکزي اداري بنسټ کښیږدي، خو دې بریالیتوب ډیر دوام ونه کړ. ډیر ژر دده د اولادونو ترمنځ د شخړو او د انګلیس د استعمار تر اغېزو لاندې راغلل. د انګریزانو لومړني او دویم جنګ له افغانانو سره دوام وکړ او د افغانستان خلک له علمي او فرهنګي پرمختیا وو بې برخې شول. افغانستان ددې پر ځای چې د علم او فرهنګ پرمختیا ته پاملرنه وکړي، د خپلې خپلواکۍ او آزادۍ ساتلو په نیت یې توره په لاس کې ونیوه او د چاپ ماشین پرځای یې وسلې او نور جګړه ییزسامان الات د خپلې دفاع لپاره هیواد ته راوړل.

د چاپ ماشین د واردولو او له هغه څخه د کار اخیستلو د فکر کولو وخت یې پیدا نه کړ.خو کله چې په (۱۸۶۳ م) کال کې امیر شیرعلي خان د امیردوست محمد خان دویم زوی د افغانستان واګې په لاس کې واخیستې او د پلار پر ځای یې د ټوټې ټوټې افغانستان چارې په لاس کې ونیوې، هڅه یې وکړه چې په هیواد کې یوه مترقي، خپلواکه او یو موټې اداره رامنځ ته کړي، خو د ورونو د مخالفت له امله یې څه نه شوای کولای او یوه موده یې د هیواد له چارو ځان ګوښه کړ. د افغانستان د کورنیو جګړو او د دښمنانو لاس وهنو امیرشیرعلی خان دې ته اړ کړ، چې په ۱۲۸۵ هجري کال کې د دویم ځل لپاره د هیواد واګې په لاس کې ونیسي او د خلکو د ارامۍ او آبادۍ په هیله یې د خپلو پرمختیایي او ترقۍ غوښتونکو هیلو ترسره کولو لپاره په کار پیل وکړ. دا پلا امیرشیرعلي خان په چټکتیا عمل وکړ.

د شرایطو په سمون سره یې سید نورمحمد شاه فوشنجي ته دنده ورکړه چې د انګلیس له لورې له خطر سره سره د هیواد د ټولنیزو، فرهنګي او اداري چارو په سمون لاس پورې کړي. د سیدنورمحمد شاه فوشنجي کابینه د نورو چارو ترڅنګ په دې بریالۍ شوه، چې د لومړي ځل لپاره د چاپ ماشین هیواد ته وارد کړي. ډیرې مجهزې مطبعې په کابل کې په کار پیل وکړ. تاریخ څرګندوي چې د امیر شیرعلي خان د واکمنۍ په موده کې د کابل د شمس النهار پرمطبعه سربیره دوې ډېریزې مطبعې هم موجودې وې.

له دې دوو مطبعو څخه یې یوه مصطفاوي نومیده. ویل کیږي چې مصطفاوي مطبعه د سردارشیرعلی خان په سرای کې له بالاحصار څخه دباندې په کار پیل وکړ. په دې اړوند سرور جویا یادونه کوي چې کیدای شي هغه دوره

کې له دوو زياتې مطبعې موجودې وې، څکه ديني او علمي اصولنامې او همدارنګه د صکوکو کاغذونه، ځينې وثيقې او پستي ټکټونه هم چاپيدل. لکه څنګه چې دريمې مطبعې د کابل د شمس النهارد جريدې اوومه، اتمه او نهمه ګڼه چاپ کې دا عبارت ترسترګو کيږي:

"اشتهاراخبار شمس النهار کابل در مطبعه (مرتضاوي) به اهتمام ميرزا عبدالعلی زيور طبع پوشيده."

له دې عبارت دا څرګنديږي چې په دې وخت کې په کابل کې د شمس النهار کابل په نوم اخبار په مرتضاوي مطبعه کې چاپيده، لکه چې ورته اشاره وشوه، په دې وخت کې يوشمېر کتابونه او رسالې هم چاپيدې. لکه چې د شمس النهار جريده اوومه، اتمه، او نهمه ګڼه د شمس النهار مطبعې ته انتقال شوي او نورې ګڼې يې په مطبعه کې چاپيدې .ورځ په ورځ يې له ستونزو او نميګړتياوو سره سره پرمختيا کوله. نن تقريباً د ۳۰۰ په شاوخوا کې اخبارونه، جريدې، اوونيزې، مياشتنۍ او کليزې خپريږي

# دولسم لوست

## د تدریس وخت: (درې درسي ساعتونه)

| ګڼه | سرلیکونه | موضوعګانې | وخت |
| --- | --- | --- | --- |
| ۱. | **د لوست موضوع** | **صالح محمد هوتک، د معاصر ادب ځلنده څېره** | |
| ۲. | **د زده کړې پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي موخې** | د لوست په پای کې به زده کوونکي لاندې موخې تر لاسه کړي:<br>- د پښتو د معاصر ادب د مخکښانو په ډلې کې به مولوي صالح محمد هوتک وپېژني.<br>- د ادب د ډګر د نومياليو د ژوند د څرنګوالي د پېژندلو له لارې به ادبي وړتيا ترلاسه کړي.<br>- د پښتو له ادب سره به د زده کوونکو مينه پيدا شي.<br>- په خپلواک ډول به د متن د پای فعاليتونو د سرته رسولو وړتيا ومومي. | |
| ۳. | **د تدريس لاره** | لوستل، ليکل، پوښتنې او ځوابونه، يوه ځری فعاليت، ډله ييز فعاليتونه | |
| ۴. | **د تدريس توکي** | درسي کتاب، توره دړه، تباشير، چارت، کتابچه او قلم | |
| ۵. | **د ارزولو لاره او ميتود** | شفاهي ارزونه،ليکلي ارزونه، د څارنې ارزونه او ښوونکي دياداشت کتابچه | |
| ۶. | **په ټولګي کې د ښوونې او زده کړې فعاليتونه** | **لومړنی فعاليتونه:** ستړي مه شي، حاضري، د کوټنۍ دندې کتنه | ۶ دقيقې |
| | | **د انګېزې رامنځته کول**<br>- د لوست عنوان: مولوي صالح محمد هوتک په توره دړه ليکل،<br>- د نومياليو شاعرانو په اړه له زده کوونکو سره خبرې | ۴ دقيقې |

| ۶-۱ | د ښوونکي فعالیتونه | د زده‌کوونکو فعالیتونه | |
|---|---|---|---|
| | - ښوونکی متن په لوړ غږ لولي.<br>- ښوونکی د متن په لوستلو کې له زده‌کوونکو سره مرسته کوي.<br>- ښوونکی د مولوي صالح محمد هوتك د ژوند له یوا ړخ سره زده‌کوونکي بلدوي.<br>- ښوونکی د مولوي صالح محمد پر شعري ځانګړتیاوو زده‌کوونکي پوهوي.<br>- ښوونکی د مولوي صالح محمد د ژوند پر مهال د هېواد د حالت په اړه زده‌کوونکو ته معلومات ورکوي.<br>- ښوونکی په زده‌کوونکو کې د یوې ځانګړې موضوع په هکله د څه لیکلو وړتیا رامنځته او پیاوړي کوي.<br>- ښوونکی د ځوابونو په ویلو کې له زده‌کوونکو سره جلا جلا مرسته کوي.<br>- ښوونکی د وینا لپاره د ټولګي په وړاندې زده‌کوونکي هڅوي.<br>- ښوونکی د لوست لنډیز تکراروي او د زده‌کوونکو له پوهې څخه ډاډ ترلاسه کوي.<br>- ښوونکی په ډله ییز فعالیت کې له زده‌کوونکو سره مرسته کوي.<br>- ښوونکی زده‌کوونکو ته د پوښتنو د ځوابونو لارښوونه کوي.<br>- ښوونکی زده‌کوونکو ته د کورنۍ دندې لارښوونه کوي. | - زده‌کوونکي متن ته غوږ نیسي.<br>- زده‌کوونکي په چوپه خوله متن لولي.<br>- یو څو تنه زده‌کوونکي متن په لوړ غږ لولي.<br>- څو تنه زده‌کوونکي د مولوي صالح محمد شعر لولي.<br>- څو تنه زده‌کوونکي د مولوي صالح محمد د شعرې ښکلا په اړه یوه، یوه دقیقه خبرې کوي.<br>- زده‌کوونکي نوې کلمې یادوي او لیکي.<br>- زده‌کوونکي پوښتنو ته ځوابونه وايي،<br>- زده‌کوونکي د لوست پر لنډیز ځانونه پوهوي.<br>- زده‌کوونکي په ډله ییز فعالیت کې فعاله ونډه اخلي.<br>- زده‌کوونکي په متن کې ښېلا ښېلې (ی) ګانې په نښه او لیکي.<br>- زده‌کوونکي په کورونو کې کورنۍ دنده سر ته رسوي. | ۳۵ دقیقې |

**د متن پوښتنو ته ځوابونه**

- ښوونکی دې د زده‌کوونکو د ښې مینې او ذوق د راپیدا کولو لپاره د فعالیتونو مختلفې برخې په ډېر غور د متن له منځ یا د هغوی د ذهني ودې پر بنسټ پر هغوی کار وکړي.

ښوونکی دې د لازیاتو معلوماتو لپاره د اوسني لیکوال لومړی ټوك وګوري.

* صالح محمد هوتک د امیر امان الله خان د پاچاهۍ په پېر کې ژوند کاوه. دغه پېر د اصلاحاتو پېر و. د هېواد له آزادۍ دمخه او بیا د امان الله خان په پاچا کېدو او د آزادۍ له اعلان وروسته په هېواد کې یو لړ رفورمونه رامنځته شول. په دې رفورمونو کې د هېواد د ترقۍ او پرمختګ هدفونه نغښتي وو، خو سرته ونه رسېدل او د پاچاهۍ په سقوط پای ته ورسېدل.

**صالح محمد هوتک**

صالح محمد هوتک کندهاری د فیض محمد زوی په قوم هوتک پښتون د کندهار ولایت د بامیزو په کوځه کې په ۱۲۶۹ هـ . ش کال کې زیږیدلی دی.

صالح محمد هوتک د حبیبیې ښوونځي د پښتو ژبې د درسي کتابونو لیکوال و.

صالح محمد هوتک د پښتو ژبې د خواږه او روان نثر لیکوال او پوخ شاعر و.

صالح محمد هوتک خپلې لومړنۍ زده کړې د کابل د حبیبیې په ښوونځي کې سرته رسولي او په نوموړي ښوونځي کې د پښتو ژبې د ښوونکي دنده ور په غاړه شوه.

په ۱۲۹۹ کال د امان الله خان د واکمنۍ په وخت کې د کندهار په ولایت کې د طلوع افغان په نوم جریده منځ ته راغله، د دې جریدې چارې صالح محمد هوتک ته وسپارل شوې.

کله چې په کابل کې په ۱۳۱۴ هـ .ق کال ادبي انجمن او د پښتو انجمن سره یوځای شول، صالح محمد هوتک یې د پښتو ژبې د اړوندو چارو مسوول مقرر کړ.

د مولوي صالح محمد هوتک منظوم او منثور اثار د سراج الاخبار او طلوع افغان په جریدو کې خپاره شوي دي.

۱ - پښتو مثنوي چې له دري څخه ژباړل شوې، دا کتاب په ۱۳۱۸ کال کې لیکل شوی او په ۱۳۵۰ کال کې د پښتو ژبې د پراختیا ریاست له خوا چاپ شوی دی.

د پښتو ژبې لومړی درسي کتاب.

۲-د پښتو ژبې دویم درسي کتاب.

۲- (پښتو پښوبه)، چې په دري ژبه لیکل شوې او له اردو ژبې څخه ژباړل شوې ده.

۳- (پښتو ژبه لومړی ټوک په ۱۳۱۲ هـ.ش کال چاپ شوی دی.

۴- (پښتو ژبه) دویم ټوک

۵- د اشعارو مجموعه

۶- خود آموز پښتو

۷- د (عزیزي تفسیر) پښتو ژباړه

د مولوي صالح محمد هوتک د شعر بیلګه:

زه چې پښتو ژبه یم
د پښتنو ژبه یم
د نارینو ژبه یم
دښومیرو ژبه یم
زما روزنه وکئ
زما پالنه وکئ
زه عالمان غواړم
زه فاضلان غواړم
زه ادیبان غواړم
زه ښه زلمیان غواړم
چې ماعلمي ژبه کړي
او ما رسمي ژبه کړي

**د مولوي صالح محمد په اړوند د معلوماتو پاڼې برخه**:

په ۱۲۹۲ هـ.ق کال د «ادبیات ملی» په نوم «په قفس کې د بندي بلبل ژړا» تر سرلیک لاندې د نظم بله بیلګه:

یو سهار زما تر غوږ سوله بلبله
په قفس کې یې ژړل دا یې ویله

چې بندي شوم د صیاد له سخته دله
ولې نه پوښتي څوک حال زما یو بله

ولې نشته بې فغانه کارو بار زما
ولې حبس ابدي راغی په وار زما

# دیارلسم لوست

## د تدریس وخت: (درې درسي ساعتونه)

| ګڼه | سرلیکونه | موضوعګانې | وخت |
|---|---|---|---|
| ۱. | د لوست موضوع | **د پغمان طاق ظفر، د خپلواکۍ د ویاړ څلی** | |
| ۲. | د زده کړې پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې | د لوست په پای کې به زده کوونکي لاندې موخې تر لاسه کړي:<br>- د خپلواکۍ پر ارزښت به پوه شي.<br>- په زده کوونکو کې به د خپلواکۍ د اهمیت د احساس وړتیاوې رامنځته شي.<br>- په زده کوونکو کې به د خپلواکۍ د ساتلو وړتیاوې ځواکمنې شي،<br>- د هېواد پر تاریخي مخینې به پوه شي.<br>- د هېواد د خپلواکۍ د ساتلو روحیه به په کې رامنځته او له هغې سره به یې مینه پیدا شي.<br>- په زده کوونکو کې به د لیك او لوست د زده کړې او نوو لیکنو وړتیا وروزل شي.<br>- په خپلواك ډول به د متن د پای فعالیتونو د سرته رسولو وړتیا ومومي. | |
| ۳. | د تدریس لاره | لوستل، لیکل، پوښتنې او ځوابونه، یوه ځری فعالیت، ډله ییز فعالیتونه | |
| ۴. | د تدریس توکي | درسي کتاب، توره دړه، تباشیر، چارت، د پغمان د طاق ظفر او د خپلواکۍ د نورو منارونو تصویرونه، کتابچه او قلم | |
| ۵. | د ارزونو لاره او میتود | شفاهي ارزونه،لیکلۍ ارزونه، د څارنې ارزونه د ښوونکي د کتابچې ارزونه. | |
| ۶. | په ټولګي کې د ښوونې او زده کړې فعالیتونه | **لومړني فعالیتونه**: سترې مه شي، حاضري، د کورنۍ دندې کتنه: | ۶ دقیقې |
| | | - **دانګېزې رامنځته کول**:<br>- د "طاق ظفر– خپلواکي" سرلیك په توره دړه لیکل،<br>- د زده کوونکو په وړاندې د طاق ظفر د انځور نصبول،<br>- د خپلواکۍ په اړه لنډې خبرې کول،<br>- د خپلواکۍ د ارزښت د بیانولو له لارې د زده کوونکو د احساس راژوندي کول،<br>- د خپلواکۍ په اړه له زده کوونکو څخه پوښتنې کول اود نوي لوست پیلول. | ۴ دقیقې |

| ۱-۶ | د ښوونکي فعالیتونه | د زده‌کوونکو فعالیتونه | |
|---|---|---|---|
| | - ښوونکی متن په لوړ غږ لولي.<br>- ښوونکی د متن په لوستلو کې له زده‌کوونکو سره مرسته کوي.<br>- - ښوونکی د خپلواکۍ د تر لاسه کولو لپاره د قومونو پر وحدت او یووالي رڼا اچوي.<br>- ښوونکی د هغه ولس په اړه خبرې کوي چې د بل تر لاس لاندې ژوند کوي.<br>- ښوونکی د خپلواکۍ د ارزښت په اړه معلومات ورکوي.<br>- ښوونکی د هېواد د خپلواکۍ او د طاق ظفر ترمنځ پر اړیکو رڼا اچوي.<br>- ښوونکی د ځوابونو په ویلو کې له هر زده‌کوونکي سره جلا جلا مرسته کوي.<br>- ښوونکی د وینا لپاره د ټولګي په وړاندې زده‌کوونکي هڅوي.<br>- ښوونکی د لوست لنډیز وړاندې کوي.<br>- ښوونکی په ډله ییز فعالیت کې له زده‌کوونکو سره مرسته کوي.<br>- ښوونکی د کورنۍ دندې لارښوونه کوي. | - زده‌کوونکي په بشپړ پام متن ته غوږ نیسي.<br>- زده‌کوونکي متن په چوپه خوله لولي،<br>- څو تنه زده‌کوونکي په وار سره د متن بېلا بېلې برخې لولي<br>- څو تنه زده‌کوونکي د ټولګي په وړاندې د خپلواکۍ پر ارزښت خبرې کوي.<br>- زده‌کوونکي نوې کلمې یادوي او لیکي.<br>- زده‌کوونکي په جملو کې هغه کلمې کاروي چې له خپلواکۍ سره اړیکې ولري، لکه ازادي، استقلال، سربښندل. ...<br>- څو تنه زده‌کوونکي په خپله خوښه د طاق ظفر په هکله خپل معلومات بیانوي.<br>- زده‌کوونکي پوښتنو ته ځوابونه وایي.<br>- زده‌کوونکي په ډله ییز فعالیت کې فعاله ونډه اخلي.<br>- زده‌کوونکي په کورونو کې کورنۍ دنده سر ته رسوي. | ۳۵ دقیقې |

**د متن پوښتنو ته ځوابونه**

طاق ظفر د کابل ولایت د پغمان په ولسوالۍ کې جوړ شوی دی. د پغمان ولسوالي له کابل ښار څخه د لویدیځ په لور (۲۷) کېلومتره لرې پرته ده. پغمان د امان الله خان د پاچاهۍ پر مهال زیات ارزښت درلود. امیر امان الله خان د خپلواکۍ له اخیستلو وروسته د اساسي قانون لومړۍ لویه جرگه په پغمان کې جوړه کړې وه.

همدا راز پغمان په اوړي کې د ښې آب وهوا له امله د ښاریانو د میلو ځای دی. زیات شمېر کابل ښاریان په اوړي کې د جمعې په ورځو هلته ځي او د هغه ځای له ښې هوا او ښکلې طبیعت څخه خوند اخلي.

**ښوونکي ته معلومات**

**د پغمان طاق ظفر**

زموږ د هیواد د تاریخي ودانیو څخه یوه د پغمان طاق ظفر دی چې د وطن د استقلال د شهیدانو د یادونې په قصد له کابل څخه (۲۷) کیلو متره لرې په پغمان کې جوړ شوی او ډېر عظمت او دبدبې درلودونکی دی.

ددې طاق په څنډو او اطرافو کې یې د هغه وخت د معمارانو په وسیله ښکلې شیان کیندل او د هغه په پاسنۍ سطح کې دغه جملې لیکل شوي دي: «بتقدیرمظرفیت و تذکار جانبازی های شاندار فرد یگانه ونخبه دودمان افغان قهرمان قوم پرست باوجدان الغازی امیر امان الله که در بدو جلوس خودش محض تحصیل حیات با شرف وزندگانی باافتخار به ملت خود یعنی استحصال آزادی مغصوبه و استرداد حقوق مشروعه جامعه افغان بیک

قیام فوق العاده بالمقابل دشمنان اقدام و مبادرت ورزید و تا (۲۸) برج اسد (۱۲۹۲) استقلال نامه افغانستان را حصول نمود. این بنای مخفرت اعتلا را که شاهد بعث بعدالموت تانست در صیفیه پغمان مینو نشان بنام طاق ظفر تأسیس نهادیم و اسمای همان جوانان سر فروش راکه در موقع اثبات فداکاری و جدیت شهید راه استقلال و حریت گشته کارنامه های مقدس خود شان را سر مشق حیات مان گذاشته اند، در حواشی این رواق ثبت نمودیم تا آئینه صحنه خونین مجاهدین و تاریخ سربازی های شهریار شجاعت قرین ما بوده برای اخلاف آتیه افغانستان محرک غلیان قومی و تازیانه غیرت ملی باشد)).

کومې تاریخې ابدې چې د افغانانو د لرغوني تاریخ د حماسو او کارنامو یادګارونو، مذهبي اوهنري شهکارونو ته تجسم ورکوي او د لارو نښې دي، یو یې هم ښارونه دي چې زموږ د نیکه ګانو د هغو میړانو او اتلو لیو له کبله چې د یرغلګرو دښمنانانو په مقابل کې یې په فاتحانه او شجاعانه ډول له ځانه ښوولي دي. د هېواد په ډېرو ځایونو کې او د ښارونو په مهمو برخو کې یادګاري منارونه او څلي جوړ شوي دي، لکه په کابل ښار کې د دهمزنګ د بریکوټ منار او کتیبه، د دهمزنګ د عبدالوکیل خان څلی، د دارالامان مانۍ، په میوند واټ کې د ملالۍ څلی، د استقلال منار او داسې نور، چې د خپل وخت تاریخ او عظمت انځوروي.

**ماخذونه:**


۱- پښتو اریانا دایرة المعارف ۹ ټوک ۱۳۵۵ کابل ۴۸۵، ۴۸۴ مخونه

# خوارلسم لوست

## د تدریس وخت: (درې درسي ساعتونه)

| وخت | موضوعګانې | سرلیکونه | ګڼه |
|---|---|---|---|
| | **قاضي او نوکر** | **د لوست موضوع** | **۱**. |
| | د لوست په پای کې به زده‌کوونکي لاندې موخې تر لاسه کړي:<br>- له نیکانو او ښو خلکو سره به د ناستې ولاړې پر ارزښت پوه شي.<br>- د خپلو اړیوالانو په غوره کولو کې به هوښیار وي.<br>- په زده‌کوونکو کې به ښه اخلاق او رښتینولي پیاوړې شي.<br>- له ښو او نیکو کارونو سره به د زده‌کوونکو مینه وروزل شي.<br>- په زده‌کوونکو کې به د وینا او لیک وړتیا پیاوړې شي.<br>- په خپلواک ډول به د متن د پای فعالیتونو د سرته رسولو وړتیا ومومي. | **د زده‌کړې پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې** | **۲**. |
| | لوستل، لیکل، پوښتنې او ځوابونه، یوه ځری فعالیت، ډله ییز فعالیتونه | **د تدریس لاره** | **۳**. |
| | درسي کتاب، توره دړه، تباشیر، چارت، کتابچه او قلم | **د تدریس توکي** | **۴**. |
| | شفاهي ارزونه،لیکلي ارزونه، د څارنې ارزونه د ښوونکي د یاداشت کتابچې ارزونه. | **د ارزولو لاره او میتود** | **۵**. |
| **۶ دقیقې** | **لومړني فعالیتونه**: ستړي مه شي، حاضري، د کورنۍ دندې کتنه | **په ټولګي کې د ښوونې او زده‌کړې فعالیتونه** | **۶**. |
| **۴ دقیقې** | **د انګیزې رامنځته کول**:<br>- په توري دړې د "قاضي او نوکر" د سرلیک لیکل،<br>- د ښو اخلاقو د یو څو بېلګو په راوړلو کیسې ته د زده‌کوونکو پام رااړول،<br>- له زده‌کوونکو څخه په موضوع پورې اړوندې پوښتنې کول.<br>- د صداقت د ارزښت په اړه د زده‌کوونکو د نظر معلومول. | | |

| ۱-۶ | د ښوونکي فعالیتونه | د زده‌کوونکو فعالیتونه | |
|---|---|---|---|
| | - ښوونکی متن په لوړ غږ لولي.<br>- ښوونکی د متن په لوستلو کې له زده‌کوونکو سره مرسته کوي.<br>- ښوونکی په ښو اخلاقو او صداقت ټینګار او له ورځني ژوند سره د هغې په اړیکو رڼا اچوي.<br>- ښوونکی له زده‌کوونکو څخه غواړي د صداقت او رښتیا په اړه که کومه شخصي تجربه ولري، هغه ووایي.<br>- ښوونکی د ځوابونو په ویلو کې له هر زده‌کوونکي سره جلا جلا مرسته کوي.<br>- ښوونکی د وینا لپاره د ټولګي په وړاندې زده‌کوونکي هڅوي.<br>- ښوونکی د لوست لنډیز بیانوي<br>- ښوونکی په ډله ییز فعالیت کې له زده‌کوونکو سره مرسته کوي.<br>- ښوونکی زده‌کوونکو ته د پوښتنو د ځوابونو لارښوونه کوي.<br>- ښوونکی د کورنۍ دندې لارښوونه کوي. | - زده‌کوونکي په پوره پام متن ته غوږ نیسي.<br>- زده‌کوونکي په چوپه خوله متن لولي،<br>- څو تنه زده‌کوونکي د نوبت له مخې متن لولي.<br>- زده‌کوونکي د ښو اخلاقو یو څو بېلګې وړاندې کوي.<br>- څوتنه زده‌کوونکي په دې باره کې خبرې کوي چې صداقت او رښتینولي د انسان په ژوند کې څه رول لوبوي.<br>- زده‌کوونکي ددې متل په مفهوم ځانونه پوهوي: هر شی چې خام وي پخیږي، خو که انسان یو ځل خام شو بیا نه پخیږي.<br>- زده‌کوونکي نوې کلمې یادوي او لیکي.<br>- څو تنه زده‌کوونکي د ټولګي په وړاندې یوه دقیقه خبرې کوي.<br>- زده‌کوونکي پوښتنو ته ځوابونه وایي.<br>- زده‌کوونکي په ډله ییز فعالیت کې فعاله ونډه اخلي.<br>- زده‌کوونکي په کورونو کې کورنۍ دنده سر ته رسوي. | ۳۵ دقیقې |

**د متن د پوښتنو ځوابونه**

ښوونکی دې د زده‌کوونکو د ښې مینې او ذوق د راپیدا کولو لپاره د فعالیتونو مختلفې برخې په ډېر غور د متن له منځ یا د هغوی د درک پر بنسټ پر هغوی کار وکړي.

# پنځلسم لوست

## د تدریس وخت: (درې درسي ساعتونه)

| ګڼه | سرلیکونه | موضوعګانې | وخت |
|---|---|---|---|
| ۱. | **د لوست موضوع** | **عبدالقادر خټک، د پښتو ادب ځلنده څېره** | |
| ۲. | **د زده کړې پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي موخې** | د لوست په پای کې به زده کوونکي لاندې موخې تر لاسه کړي:<br>- د پښتو ادب د سرکښانو په لړ کې به عبدالقادر خټک وپېژني.<br>- د ادب د ډګر د نومياليو او د هغوی په لړ کې د عبدالقادر خټك د ژوند د ځرنګوالي د پېژندلو له لارې به ادبي ورتيا ترلاسه کړي.<br>- د پښتو له ادب سره به د زده کوونکو مينه لا ډېره شي.<br>- په خپلواك ډول به د متن د پای فعاليتونو د سرته رسولو ورتيا ومومي. | |
| ۳. | **د تدريس لاره** | لوستل، ليکل، پوښتنې او ځوابونه، يوه ځری فعاليت، ډله ييز فعاليتونه | |
| ۴. | **د تدريس توکي** | درسي کتاب، توره دړه، تباشير، چارت. | |
| ۵. | **د ارزولو لاره او ميتود** | شفاهي ارزونه، ليکلي ارزونه، د څارنې ارزونه. | |
| ۶. | **په ټولګي کې د ښوونې او زده کړې فعاليتونه** | - سترې مه شي، حاضري، د کورنۍ دندې کتنه: | ۶ دقيقې |
| | | - **دانګېزې رامنځته کول**<br>- د لوست عنوان په توره دړه ليکل،<br>- د تېرو نومياليو شاعرانو په اړه له زده کوونکو سره خبرې | ۴ دقيقې |

| ۱-۶ | د ښوونکي فعالیتونه | د زده‌کوونکو فعالیتونه | |
|---|---|---|---|
| | - ښوونکی متن په لوړ غږ لولي.<br>- ښوونکی د متن په لوستلو کې له زده‌کوونکو سره مرسته کوي.<br>- ښوونکی د عبدالقادر خټك د ژوند په هکله زده‌کوونکو ته معلومات ورکوي.<br>- ښوونکی د عبدالقادر خټك پر شعري ځانګړتیاوو زده‌کوونکي پوهوي.<br>- ښوونکی د عبدالقادر خټك د ژوند په پېر کې د حالاتو په اړه زده‌کوونکو ته معلومات ورکوي.<br>- ښوونکی په زده‌کوونکو کې د یوې ځانګړې موضوع په هکله د ښه لیکلو وړتیا رامنځته او پیاوړې کوي.<br>- ښوونکی د ځوابونو په ویلو کې له هر زده‌کوونکي سره جلا جلا مرسته کوي.<br>- ښوونکی د وینا لپاره د ټولګي په وړاندې زده‌کوونکي هڅوي.<br>- ښوونکی د لوست لنډيز تکراروي او د زده‌کوونکو له پوهې څخه ډاډ ترلاسه کوي.<br>- ښوونکی په ډله ییز فعالیت کې له زده‌کوونکو سره مرسته کوي.<br>- ښوونکی زده‌کوونکو ته د پوښتنو د ځوابونو لارښوونه کوي. | - زده‌کوونکي متن ته غوږ نیسي.<br>- زده‌کوونکي په چوپه خوله متن لولي.<br>- یو څو تنه زده‌کوونکي په وار سره متن په لوړ غږ لولي.<br>- څوتنه زده‌کوونکي د عبدالقادر خټك شعر لولي.<br>- څو تنه زده‌کوونکي د عبدالقادر خټك د شعرې ښکلا په اړه یوه، یوه دقیقه خبرې کوي.<br>- زده‌کوونکي نوې کلمې یادوي او لیکي.<br>- زده‌کوونکي پوښتنو ته ځوابونه وایي.<br>- زده‌کوونکي د لوست په لنډيز ځان پوهوي.<br>- زده‌کوونکي په وار د یوې موضوع په اړه د ټولګي په وړاندې یوه، یوه دقیقه خبرې کوي.<br>- زده‌کوونکي په ډله ییز فعالیت کې فعاله ونډه اخلي.<br>- زده‌کوونکي په متن کې بېلا بېلې(ی) ګانې په نښه کوي او لیکي.<br>- زده‌کوونکي په کورونو کې کورنۍ دنده سر ته رسوي. | ۳۵<br>دقیقې |

**د متن پوښتنو ته ځوابونه**:

د پاچاهۍ پر تخت د کېناستلو پر مهال تل له هغه څخه د پرېوتلو فکر کوه، تر څو له چا سره ناوړه سلوک ونه کړې. پر مظلومو باندې سترګې رډول یو مهال له خپلې سزا سره مخامخ کېږي. باید په یاد وساتل شي.

څوک چې د مرګ او کفن څخه غافل وي او د ځنکدن حالت یې هېر وي، نو تل مغرور وي او پر نورو کبر کوي. د اجل سواره یعنې مرګ یا د مرګ اوښ د هر ژوندي د کور دروازې ته څملي. مرګ څوک نه خبروي، ناڅاپه راځي، باید سړی ورته اماده وي.

- ښوونکی دې د زده‌کوونکو د ښې مینې او ذوق د راپیدا کولو لپاره د فعالیتونو مختلفې برخې په ډېر غور د متن له منځ یا د هغوی د پوهې پر بنسټ پر هغوی کار وکړي.

د عبدالقادر خټک د ژوند د حالاتو ډېره برخه هم لکه: زموږ د ډېرو لرغونو زمانو پوهانو، ادیبانو، ملي اتلانو، سیاسي او ټولنیزو شخصیتونو په څېر د وختونو او زمانو په تیارو کې پټه پا تې ده. ډېر لږ څرک اوتت انځور یې د

خپلو اثارو د داخلي شهادتونو یا هم د هغې زماني او را وروسته وختونو د لیکلو تاریخي او ادبي منابعو او سرچینو له مخې تر موږه را رسیدلی چې د هغې په رڼا کې یې دلته درپیژنو.

**زوکړه او کورنی:**

عبدالقادر خټک په قوم کراڼي خټک پښتون، د پیاوړي نومیالي او فرهنګپال شخصیت، شاعر، لیکوال د توري او قلم د ډګر اتل، خوشحال خان خټک زوی دی. د تاریخ مرصع له مخې یې نوم په نهمه شمېره کې راځي.
د تاریخ مرصع د ځرګندونو له مخې د خوشحال خان خټک د یوې تاریخي قطعې په رڼا کې د عبدالقادر خټک د زوکړې نیټه ۱۰۲۳ هـ. ق کال اټکل شوې ده.
عبدالقادر خان خټک د خوشحال خان خټک په څېر د یو عالم او فرهنګپال شخصیت په کور کې سترګې نړۍ ته غړولې دي. ځرګنده ده چې له هماغه کوچینوالي (ځلور، پنځه کلنی) څخه یې په دودیزې زده‌کړې پیل کړی وي. په ځینو اسنادو کې د ده د ځرګندونو له مخې یې لومړی استاد خپل پلار (خوشحال خان خټک) دی.
پوره جوته نه ده چې عبدالقادر خټک به له خپله پلاره څومره او تر څه وخته زده‌کړه کړې وي. په دې اړوند هم معلومات نشته چې کله او چیرته یې له کوم بل استاد څخه دیني علوم او نور فنون لوستي دي، خو څه شی چې موږ د نوموړي د لوړې او منظمې زده‌کړې په باب باوري کوي، هغه دده لوړ علمي او ادبي صلاحیتونه، پیاوړی استعداد ، په عربي او پارسي ژبو په ډېره لوړه کچه پوهیدنه ده. دا ټکی دده د راپاتې اثارو له مطالعې څخه ډېر ښه ځرګندیږي.
عبدالقادر خټک د ګلدستې د سریزې په یوه برخه کې د خپل پلار او استاد (خوشحال خان) د علمي او ادبي صلاحیتونو د ستاینې او ښوونې په لړ کې وایې:
"په علم عربي کې لږ دخیل و، په پارسي کې سرآمد د خپل عصر و، شعر یې پارسي، پښتو ښه انشاکا وه، اما پښتو شعر یې جهان لکه شیخ سعدي ونیوه ... .)
دې ټکي ته چې علم عربي کې لږ دخیل و، عبدالقادر خټک یې یادونه کوي، په زیاتې پاملرنې سره ځینې څېړونکي په دې باور دي چې عبدالقادرخان د عربي ژبې په پوهه کې له خپل استاد څخه هم یو څه وړاندې و.
د عبدالقادر خټک د زده‌کړې او پوهې په اړوند باید یادونه وکړو چې نوموړی په عربي، پارسي او هندي ژبو پوهیده. ده د شیخ سعدي ګلستان او مولانا جامي یوسف زلیخا ادبي اثار په خپل ټول خوند رنګ سره په پښتو ژباړلي دي. د پارسي شعر نمونه یې هم شته.
له پورتنیو ځرګندونو څخه دې پایلې ته رسیږو چې عبدالقادرخان خټک د خپل وخت دودیز دیني او ادبي علوم زده‌کړي دي. نوموړی د لوړې پوهې، ژورې مطالعې او پیاوړي استعداد خاوند و په دغو علومو کې یې د تدریس او استادۍ دنده هم ترسره کړې ده.
له ځینو منابعو او روایاتو جوتیږي چې عبدالقادر خان خټک د خپل تره فقیر جمیل له لور سره واده کړی و، خو د واده نیټه او د اولادونو د شمیر په باب یې معلومات نشته.
تر کومه چې خبره له کورنۍ او له پلار سره اړیکي پیداکوي، ویلای شو، چې له عبدالقادر خان خټک سره یې پلار ډېره مینه درلوده او له ډېرې مینې یې ورته د (بابادل) لقب ورکړی و، لکه چې په یوه بیت کې یې داسې ستایلی دی.

ښه زوی د بابا دل دی
تل دې ژوي په جهان

عبدالقادر خټک د خپل علمي ادبي او فرهنګي ژوند ترڅنګ سیاست ته هم لاس غځولی. د ملي او سیاسي هځو

په لړکې یې له خپل پلار خوشحال خان خټک سره په ځینو مشهورو جګړو کې برخه اخیستې ده.
عبدالقادر خټک له پلار سره ډیره مینه درلوده دا خبره د هغه له دیوان او نورو اثارو څخه ښه جوتیږي، چې ځای په ځای یې د هغه علمي، ادبي او سیاسي مقام په ډیر درناوي ستایلی او هغه یې خپل استاد بللی دی. د ګلدستې له سریزې څخه دا یوه څلوریزه د بیلګې په ډول را اخلو:

که عقل پوهه که تیغ که دیګ وو
په پښتانه کې د خوشحال بیګ وو
زر یې میړانې ته په شمار شل وو
زر یې سخا ته د صحرا ریګ وو

تاریخ مرصع وړاندې لیکي: "عبدالقادر خان خټک د ځینو کورنیو ستونزو او شخړو له امله په ۱۱۲۴هـ. ق له خپل پلرني ټاټوبې کډه شوی او ستونزمنې شپې ورځې یې تیرې کړې دي. نوموړي د ګلدستې په سریزه کې ددې پیښې داسې یادونه کړې ده.
په سن زر سل څلرویشت د هجرت نبويﷺ په سبب د حوادث روزګار، بې یاره، بې دیاره، بې مونس، بې غمګساره، په یو ښهر کې په یوه کلبه کې اندوه کې، که د صحرا په غارکې یې اوقات ګزاري کوله.... چې ورته نغوته (اشاره) وشوه چې عبدالقادر خټک له خپل پلار سره ۱۰۸۴ هـ ق د نوښار تانې او ۱۰۸۵ هـ ق کال یې له شیر محمد خان بنګښ سره د کښت په جګړه کې ګډون درلود. ویل کیږي چې عبدالقادر خان خټک په همدغه وروستۍ جګړه کې ټپي شوی و.
د اشرف خان هجري له بندیتوب وروسته عبدالقادر خټک د یو څه وخت لپاره د قوم مشر هم پاتې شوی دی. د سیاسي هلوځلو په لړ کې د پټې خزانې مؤلف محمد هوتک د څرګندونو له مخې عبدالقادر خان خټک د سیاسي هلوځلو په لړ کې په ۱۱۱۳ هـ ق کال په کابل کې لیدل شوی و.
لکه چې یادونه وشوه د عبدالقادر خټک د ژوند ډیره موده د تدریس، تلقیني ارشاد، علمي او ادبي فعالیتونه و. نوموړي د ژوند په اوږدوکې د خپلو مصروفیتونو او بوختیاوو یو بشپړ انځور په لاندې بیت کې ډیر ښه وړاندې کوي:

چې پرې غم غلطوم درې مې محرم دي
یو قلم، دویم کتاب، دریم اشعار خپل

د تاریخ مرصع د څرګندونو له مخې عبدالقادر خان خټک د ۱۱۲۵ هـ . ق تر جمادی الاول پورې ژوندی و. ډیر څیړونکي د میجر راورټي په قول، عبدالقادر خان خټک په سپین ږیرتوب (د ژوند په وروستیو شپو ورځو) کې د خپل کور کلي پرېښودو ته اړ شوی او د خپل وراره افضل خان له لاسه یاد هغه په اشاره د ۱۱۲۵ هـ ق کال په شاوخوا کې وژل شوی دی.
د عبدالقادر خټک ادبي او عرفاني لار همغه لار ده، چې موږ یې په خپلو ادبي څیړنو کې د خوشحال خان ادبي مکتب یاد خټکو ادبي مکتب بولو. ددې مکتب بنسټ د پښتو ژبې نومیالي، پیاوړي شاعر، لیکوال، فرهنګپال او توریالي خوشحال خټک ۱۰۲۲ - ۱۱۰۰ هـ ق) ایښی دی.

ښوونکی دې د لازیاتو معلوماتو لپاره د اوسني لیکوال لومړی ټوک وګوري..

## شپاړسم لوست

### د تدریس وخت: (درې درسي ساعتونه)

| گڼه | سرليکونه | موضوعگانې | وخت |
|---|---|---|---|
| ۱. | **د لوست موضوع** | **دوديزې لوبې: زموږ د ولس هنداره** | |
| ۲. | **د زده کړې پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي موخې** | د لوست په پای کې به زده کوونکي لاندې موخې تر لاسه کړي:<br>- د هېواد د دوديزو لوبو په هکله به معلومات پیدا کړي.<br>- په زده کوونکو کې به د بدني روزنې او ورزش مينه راوپارېږي.<br>- د ملي دودونو او لوبو پر اهميت او ارزښت به پوه شي.<br>- د ملي لوبو د زده کړې له لارې به په زده کوونکو کې د ملي يووالي روحيه پياوړې شي.<br>- په زده کوونکو کې به د يوې موضوع په اړه د وينا او ليک وړتيا رامنځته شي.<br>- په خپلواک ډول به د متن د پای فعاليتونو د سرته رسولو وړتيا ومومي. | |
| ۳. | د تدريس لاره | لوستل، ليکل، پوښتنې او ځوابونه، يوه ځری فعاليت، ډله ييز فعاليتونه | |
| ۴. | د تدريس توکي | درسي کتاب، توره دړه، تباشير، چارت، د ملي لوبو يو انځور يا عکس، کتابچه او قلم | |
| ۵. | د ارزولو لاره او ميتود | شفاهي ارزونه،ليکلي ارزونه، د څارنې ارزونه د ښوونکي د ياداشت کتابچه | |
| ۶. | په ټولگي کې د ښوونې او زده کړې فعاليتونه | **لومړني فعاليتونه:** سترې مه شي، حاضري، د کورنۍ دندې کتنه | ۶ دقيقې |
| | | **دانگېزې رامنځته کول:**<br>- د دوديزو لوبو عنوان په توره دړه ليکل،<br>- د دوديزو لوبو په اړوند له زده کوونکو څخه د يوڅو پوښتنو کولو له لارې په لوست پيل. | ۴ دقيقې |

| ۱-۶ | د ښوونکي فعالیتونه | د زده‌کوونکو فعالیتونه | |
|---|---|---|---|
| | - ښوونکی متن په لوړ غږ لولي.<br>- ښوونکی د متن په لوستلو کې له زده‌کوونکو سره مرسته کوي.<br>- ښوونکی په لوست کې د نومول شوو لوبو په اړه زده‌کوونکو ته تفصیلي معلومات ورکوي.<br>- ښوونکی دې پر زده‌کوونکو یو څو ممکنه لوبې تمثیل کړي.<br>- ښوونکی د ځوابونو په ویلو کې له هر زده‌کوونکي سره جلا جلا مرسته کوي.<br>- ښوونکی د وینا لپاره د ټولګي په وړاندې زده‌کوونکي هڅوي.<br>- ښوونکی د لوست لنډیز بیانوي.<br>- ښوونکی په ډله ییز فعالیت کې له زده‌کوونکو سره مرسته کوي.<br>- ښوونکی زده‌کوونکو ته د پوښتنو د ځوابونو لارښوونه کوي.<br>- ښوونکی د کورنۍ دندې لارښوونه کوي. | - زده‌کوونکي متن ته غوږ نیسي.<br>- زده‌کوونکي په چوپه خوله متن لولي.<br>- د مخکیني نوبت له مخې څو تنه زده‌کوونکي متن په لوړ غږ لولي.<br>- که کوم زده‌کوونکی په کومه لوبه پوهیږي، هغه دې په ټولګي کې اجرا کړي.<br>- زده‌کوونکي د لوبو په تمثیل کې له نورو زده‌کوونکو سره ونډه اخلي.<br>- زده‌کوونکي د نوبت له مخې د خپلې سیمې د لوبو په هکله نورو ته معلومات ورکوي.<br>- زده‌کوونکي نوې کلمې یادوي او لیکي.<br>- زده‌کوونکي پوښتنو ته ځوابونه وایي.<br>- زده‌کوونکي په وار سره د ټولګي په وړاندې د یوې ټاکلې موضوع په اړه یوه، یوه دقیقه خبرې کوي.<br>- زده‌کوونکي په ډله ییز فعالیت کې فعاله ونډه اخلي.<br>- په کور کې کورنۍ دندې سر ته رسوي. | ۳۵ دقیقې |

**پوښتنو ته ځوابونه او وروستني تمرینونه**

- ښوونکی دې په ښوونځي کې پر زده‌کوونکو دودیزې لوبې په عملي توګه اجرا کړي. له هر زده‌کوونکي دې وغواړي چې که د بلې سیمې کومه لوبه یې زده وي، نورو زده‌کوونکو ته دې ورزده‌کړي او په دې هکله دې د لوبو پر ارزښت او د هغو په ټولنیز رول او په یووالي کې د هغو د اهمیت په اړه معلومات چمتو کړي.

**ښوونکي ته د زده‌کړې سرچینې**

زموږ ګران افغا نستا ن د نورو هېوادو نو په شان ډېره مادي او معنوي شتمني لري. له ځینو یې ګټه پورته شوې او ځینې یې له لاسوهنې پرته پاتې دي اوبه نړیوال ډګرکې نه دي پېژندل شوي. که کومې پېژندل شوې وي، د هغوی لپاره امکانا ت په نظر کې نه دي نیول شوي. ښې بیلګې یې زموږ ولسي لوبې دي. دا لوبې په کورکلي کې دود لري. په خواشینۍ سره باید یادونه وکړو چې همداسې دکور اوکلي په چاپیریال کې پا تې دي او په اوږدو زمانوکې له یو نسل څخه بل نسل ته په میراث پا تې دي. بیلګې یې دا لاندې دي:

خوسی، توپ ډنډه، ډې، چینندرۍ ،میرګاټ، کرښې، پتپټانې، وزلوبه، پړی کشول، شیطا ن مایه، منګی مات، سرشوکانې، بډۍ یا ګوډۍ الوځول، ګا تې یا پنځه ګانې، واوره ویشتل، چارخط، د مېچنوزغی اولیندۍ لوبه، شمبه را ت، غوزلوبه،کرښې د ځنګله بلا اوداسې نور ې. دا هغه لوبې دي چې د افغانستا ن په بېلا بېلو سیمو او بېلا بېلو ولسونو کې دود دي. زیا تره یې د کوچنیا نو او زلمیانوپه منځ کې ترسره کیږي. ځینې یې د لویانو ترمنځ

هم ترسره کیږي. لکه وزلوبه، پړی کشول، تیږه اچول، توپ ډنډه اوداسې نو رې .
ځینې داسې لوبې شته چې هغه یا له ډیرو پخوا زمانوڅخه له نورو ګاونډیو هېوادونو او یا همدلته منځته راغلي دي. په هرصورت اوس مهال زموږ د هیواد ګوټ ګوټ کې رواج شوي اوپه دې وروستیو کې یې داسې مینه وال پیداکړي چې بې له استادانو یې هم نړیوالو لوبو ته لاره پیدا کړې. ښې بیلګې یې کرکټ ،او د تکواندو مشهورې لوبې دي چې په دې دواړو لوبو کې افغا نې زلمیانو نړیوالیِ اتلولی ِکېونه ترلاسه کړي دي او په میړانه او شهامت سره افغا نستا ن ته راستا نه شوي دي. ددې ترڅنګ ځینې داسې نړیوالې لوبې دي چې هغه په افغانستان کې دود نه دي خو افغاني زلمیان بیا په هغو کې لاس بری لري. اوس مهال لږې لږې دود شوي دي، لکه: بایسکل ځغلونه، باسکټ بال ،ها کي، لامبو وهل، سوک وهنه، تینس، ځغا سته اوداسې نورې .
**ماخذونه**:
- د ماشومانو ولسي لوبې
- د خلکو فولکلور

# اووه لسم لوست

## د تدریس وخت: (درې درسي ساعتونه)

| ګڼه | سرلیکونه | موضوعګانې | وخت |
|---|---|---|---|
| ۱. | **د لوست موضوع** | **هانس کرستین اندرسن** | |
| ۲. | **د زده‌کړې پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې** | د لوست په پای کې به زده‌کوونکي لاندې موخې تر لاسه کړي:<br>- د نړیوالو ادبي څېرو له ډلې څخه به اندرسن وپېژني.<br>- د نړیوال ادب د ځانګړتیاوو په اړه به لږ و ډېر معلومات تر لاسه کړي.<br>- په زده‌کوونکو کې به ادبي مینه پیدا او پیاوړې شي.<br>- زده‌کوونکي به د وینا او لیک وړتیا ترلاسه کړي.<br>- په خپلواک ډول به د متن د پای فعالیتونو د سرته رسولو وړتیا ومومي. | |
| ۳. | د تدریس لاره | لوستل، لیکل، پوښتنې او ځوابونه، یوه څرې فعالیت، ډله ییز فعالیتونه | |
| ۴. | **د تدریس توکي** | درسي کتاب، توره دړه، تباشیر، چارت، کتابچه او قلم | |
| ۵. | **د ارزولو لاره او میتود** | شفاهي ارزونه،لیکلي ارزونه، د څارنې ارزونه د ښوونکي د یاداشت کتابچه | |
| ۶. | **په ټولګي کې د ښوونې او زده‌کړې فعالیتونه** | **لومړني فعالیتونه**: ستړي مه شي، حاضري، د کورنۍ دندې کتنه | ۶ دقیقې |
| | | - **دانګېزې رامنځته کول**:<br>-د هانس کرستین اندرسن نوم په توره دړه لیکل او د انځور ځړول،<br>- د نړیوالو ادبي څېرو په هکله د زده‌کوونکو د پوښتنو په ترڅ کې د لوست پیلول، | ۴ دقیقې |

| ۶-۱ | د ښوونکي فعالیتونه | د زده‌کوونکو فعالیتونه | |
|---|---|---|---|
| | - ښوونکی متن په لوړ غږ لولي.<br>- ښوونکی د متن په لوستلو کې له هر زده‌کوونکو سره مرسته کوي.<br>- ښوونکی زده‌کوونکو ته د اندرسن د ژوند په اړه معلومات ورکوي.<br>- ښوونکی کوچنیانو ته د اندرسن په لیکنو رڼا اچوي.<br>- ښوونکی د اندرسن پر کیسو باندې خبرې کوي.<br>- ښوونکی په زده‌کوونکو کې د یوې ځانګړې موضوع په هکله د څه لیکلو وړتیا رامنځته او پیاوړې کوي.<br>- ښوونکی په ځوابونو کې له هر زده‌کوونکي سره جلا جلا مرسته کوي.<br>- ښوونکی د وینا لپاره د ټولګي په وړاندې زده‌کوونکي هڅوي.<br>- ښوونکی د لوست لنډیز تکراروي او د زده‌کوونکو له پوهېدو څخه ډاډ ترلاسه کوي.<br>- ښوونکی په ډله ییز فعالیت کې له زده‌کوونکو سره مرسته کوي.<br>- ښوونکی زده‌کوونکو ته د پوښتنو د ځوابونو لارښوونه کوي او کورنۍ دنده ورته سپاري. | - زده‌کوونکي متن ته غوږ نیسي.<br>- زده‌کوونکي په چوپه خوله متن لولي.<br>- یو څو تنه زده‌کوونکي په وار سره متن په لوړ غږ لولي.<br>- څوتنه زده‌کوونکي د اندرسن د څو کیسو لنډیز وایي.<br>- زده‌کوونکي نوي کلمې یادوي او لیکي.<br>- زده‌کوونکي پوښتنو ته ځوابونه وایي.<br>- زده‌کوونکي د لوست په لنډیز ځان پوهوي.<br>- داوطلب زده‌کوونکي د ټولګي په وړاندې د خپلې خوښې پر یوې موضوع دوې، دوې دقیقې خبرې کوي.<br>- زده‌کوونکي په ډله ییز فعالیت کې فعاله ونډه اخلي.<br>- زده‌کوونکي په متن کې ښلا ښلې (ی) ګانې په نښه او لیکي.<br>- زده‌کوونکي د متن د وروستۍ برخې پوښتنو ته ځوابونه وایي.<br>- زده‌کوونکي کورنۍ دنده سر ته رسوي. | ۳۵ دقیقې |

۷ - **د متن پوښتنو ته ځوابونه**

– **هانس کرستین اندرسن** (Hans Christian Andersen)

اندرسن (۱۸۰۵ - ۱۸۷۵) ډنمارکي شاعر او کیسه لیکونکی و. د پلار نوم یې هانس کرستین او د موچي ګرۍ دنده یې درلوده. هانس د ماشومتوب دوره په بېوزلۍ کې تېره کړه، یو متفکر او حساس ځوان ترې جوړ شو. په ۱۴ کلنۍ کې یې پلار مړ شو. مور یې بل واده وکړ. اندرسن کوپنهاګن ته ولاړ چې لوبغاړی شي. په دې لاره کې یې بریالیتوب په برخه نشو. په ۱۸۲۲ کال کې یې د تیاتر د یو مدیر په مرسته، چې دده مینه ورته څرګنده شوې وه، منظمې زده‌کړې پیل کړې. وروسته اندرسن د اپرا د تیاتر په برخه کې هڅې وکړې، خو نتیجه یې ورنه کړه. دغه

مهال یې یوه لنډه شاعرانه منظومه غندنه ولیکله. دې غندنې ډېر بریالیتوبونه ترلاسه او اندرسن یې مشهور کړ. وروسته یې "د نیکولا د برج دپاسه مینه"، "خیالي شعرونه او طرحې"، "د اوړي په موده کې" او "د کال د دولسو میاشتو د شعرونو لړۍ" ولیکلې. په ۱۸۳۱ کال کې د اندرسن لومړی کتاب خپور شو. په ۱۸۳۳ کال کې فرانسې او ایتالیې ته لاړ او د (Improvisatoren) په نامه یو داستان ته یې مواد راټول کړل. دا داستان یې په ۱۸۳۶ کال کې خپور کړ. ددې داستان اتل، چې د اندرسن د وتلو داستانو په کتار کې شمېرل کیږي، یو ایټالیایي ځوان دی چې د بدیهې ویلو له لارې د خلکو پام ځانته اړوي، د خلکو په مرسته له تنګسې ځان راوباسي او زده‌کړه کوي. وروسته د عاشقانه او افسانوي پېښو په څېر له رنګارنګ ستونزو سره مخامخ کیږي. نوموړی داستان په اصل کې د اندرسن شخصي کیسه ده او ان سرلیک یې له هغه لقب څخه اخیستل شوی چې پخپله ده ته ورکړ شوی و. نوموړی داستان زیات ذهني انځورونه لري چې د زیات شمېر روماتتیکو شاعرانو په پرتله یې د اورغورځوونکو او داړه مارانو په لاسونو ویجاړه شوې ایټالیه او له شرابیانو څخه د هغې ډکې شرابخانې تندارچیانو ته وړاندې کړې دي. بدیهه ویونکې داستان اندرسن شهرت ته ورساوه.
وروسته یې په ۱۸۳۵ کې د "ماشومانو ته کیسه" په نامه لیکنې لومړۍ ټولګه خپره کړه او ډېر بریالیتوب یې تر لاسه کړ. له هغه وروسته یې تر ۱۸۸۲ کال پورې هرکال د کیسو یوه ټولګه خپروله. ټولې ۱۸۶ کیسې یې خپرې کړې. په نوموړو کیسو کې "بدرنګ چرګوړی"، "آبي ښاپېرۍ"، "د صنوبر ونه" او "سرې پڼې" ډېرې مشهورې دي. ددې یو شمېرکیسو سرچینه د ډنمارک خلک دي چې اندرسن پخپله په کوچنیوالي کې هغه اورېدلي او بیا یې په ډېرو ښو او خوندورو کلمو کې بیان کړې دي. یو شمېر نورې کیسې د پخوانۍ سکندناوې هېوادونو او همدارنګه له تاریخ څخه اخیستل شوي دي، خو زیاتره یې د اندرسن د ذهن زیږنده ده. اندرسن د کیسې لیکلو د ځانګړې وړتیا له لارې د خپلو کیسو اتلانو ته قوت ورکوي او هغوی ته د انسان په څېر د خبرو کولو وړتیا وربښي. د هغه د کیسو ټولګې ډېر شهرت ته ورسېدلې او اندرسن یې د کورنیو په منځ کې مشهور کړ. اندرسن له شهرت وروسته خپل ژوند په سفرونو او د خپلو ملګرو سره په ناسته ولاړه تېر کړ او د خپل خیال نړۍ یې پراخه کړه. اندرسن کوچنیانو ته د کیسو له ټولګې پرته نورکتابونه هم خپاره کړل.
اندرسن په ۱۸۳۳ کال کې لومړی "زما ژوند" او وروسې د"زما د ژوند کیسه" په نامه کتاب خپور کړ. په دې کتاب کې د شاعر بشپړ ژوند او هغه پېښې انځور شوې، چې پخپله لیکوال په سترګو لیدلي دي. د ماشومتوب له مهاله نېولې بیا د پلار بې وخته مړینې، د کورنۍ اړیکو شلېدل او ستونزمنې زده‌کړې داسې پېښې دي، چې څرګندوي دې ستر لیکوال خپل د ماشومتوب او نوې ځوانۍ دوره په څومره ستونزو او کړاو تېره کړې ده، خو بیا هم یې په خاطر کې له نیکۍ، مهربانۍ او حمایت پرته نور څه نه دي پاتې. وروسې په اروپایي هېوادونو کې د سفرونو او د هغې د جاذبې، تیاترونو، موزیمونو او مشهورو اشخاصو په اړه څرګندونې کوي. اندرسن د پاریس، ایټالیې، المان او انګلستان په اړه ښکلې او په زړه پورې لیکنې کړې دي. که په دې هېوادونو کې یې له کوم شاعر یا لیکوال سره لیدلي، د هغوی په اړه یې لیکنې کړې. اندرسن پخپله ویلي دي: "زما ژوند یوه ښکلې کیسه ده. هغه مهال چې یو یوازې او بېوزلی ماشوم وم، په لاره کې له یوې پیاوړې ښاپېرۍ سره مخامخ شوم، ویې ویل: وګوره، په راتلونکې کې څه غواړې چې شې، لاره دې غوره کړه. زه له تا نه خپل نصیحتونه، نه سپموم. هرچېرته به دې لارښود واوسم. اوس زما "د ژوند کیسه"، هماغه څه خلکو ته وړاندې کوي، چې ښاپېرۍ راته زده‌کړې دي."
اندرسن، نه یوازې د ډنمارک له سترو لیکوالانو څخه دی، بلکې د نړۍ د سترو داستان لیکونکو په کتار کې شمېرل کیږي.

# اتلسم لوست

## د تدریس وخت: (درې درسي ساعتونه)

| ګڼه | سرلیکونه | موضوعګانې | وخت |
|---|---|---|---|
| ۱. | **د لوست موضوع** | **د مطالعې ارزښت** | |
| ۲. | **د زده کړې پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې** | د لوست په پای کې به زده کوونکي لاندې موخې تر لاسه کړي:<br>- د مطالعې پر اړتیا او اهمیت به وپوهیږي.<br>- په زده کوونکو کې به له مطالعې سره مینه پیدا شي.<br>- په زده کوونکو کې به د مطالعې وړتیا ځواکمنه شي.<br>- په زده کوونکو کې به د تخلیقي یعنې نوو لیکنو او وینا وړتیا وروزل شي.<br>- په خپلواک ډول به د متن د پای فعالیتونو د سرته رسولو وړتیا ومومي. | |
| ۳. | **د تدریس لاره** | لوستل، لیکل، پوښتنې او ځوابونه، یوه ځری فعالیت، ډله ییز فعالیتونه | |
| ۴. | **د تدریس توکي** | درسي کتاب، توره دړه، تباشیر، چارت، کتابچه او قلم | |
| ۵. | **د ارزولو لاره او میتود** | شفاهي ارزونه،لیکلې ارزونه، د څارنې ارزونه او د ښوونکي د یاداشت کتابچه | |
| ۶. | **په ټولګي کې د ښوونې او زده کړې فعالیتونه** | **لومړني فعالیتونه:** سترې مه شي، حاضري، د کورنۍ دندې کتنه | ۶ دقیقې |
| | | **د انګېزې رامنځته کول:**<br>د مطالعې عنوان په توره دړه لیکل،<br>- د مطالعې په اړه له زده کوونکو څخه څو پوښتنې کول،<br>- د مطالعې د ګټو په ګوته کول، | ۴ دقیقې |

| ۱-۶ | د ښوونکي فعالیتونه | د زده‌کوونکو فعالیتونه | |
|---|---|---|---|
| | - ښوونکی متن په لوړ غږ لولي.<br>- ښوونکی د متن په لوستلو کې له زده‌کوونکو سره مرسته کوي.<br>- ښوونکی د مطالعې ګټې او ارزښت بیانوي.<br>- ښوونکی زده‌کوونکو ته د سمې مطالعې په هکله معلومات ورکوي.<br>- ښوونکی زده‌کوونکي د ټولګي په وړاندې خبرو ته هڅوي.<br>- ښوونکی زده‌کوونکو ته د مطالعې چل ور زده‌کوي.<br>- ښوونکی د ځوابونو په ویلو کې له هر زده‌کوونکي سره جلا جلا مرسته کوي.<br>- ښوونکی د لوست لنډیز بیانوي.<br>- ښوونکی په ډله ییز فعالیت کې له زده‌کوونکو سره مرسته کوي.<br>- ښوونکی زده‌کوونکو ته د پوښتنو د ځوابونو او د کورنۍ دندې لارښونه کوي. | - زده‌کوونکي متن ته غوږ نیسي.<br>- زده‌کوونکي په چوپه خوله متن لولي.<br>- څو تنه زده‌کوونکي د نوبت له مخې متن لولي.<br>- زده‌کوونکي د مطالعې په اړه خپل نظر څرګندوي.<br>- څو تنه زده‌کوونکي د مطالعې په ګټو خبرې کوي.<br>- زده‌کوونکي نوې کلمې یادوي او لیکي.<br>- زده‌کوونکي پوښتنو ته ځوابونه وایي.<br>- زده‌کوونکي په وار سره د خپلې مطالعې په اړه یوه، یوه دقیقه خبرې کوي او څرګندوي چې د کومو کتابونو مطالعه یې خوښېږي.<br>- زده‌کوونکي په ډله ییز فعالیت کې فعاله ونډه اخلي.<br>- زده‌کوونکي په کورونو کې کورنۍ دندې سر ته رسوي. | ۳۵ دقیقې |

**د متن پوښتنو ته ځوابونه:**

- ښوونکی دې د زده‌کوونکو د هڅونې په موخه د فعالیتونو مختلفې برخې په ډېر غور د متن له منځ یا د هغوی د درک پر بنسټ پر هغوی کار وکړي.

# نولسم لوست

## د تدریس وخت: (درې درسي ساعتونه)

| ګڼه | سرلیکونه | موضوعګانې | وخت |
|---|---|---|---|
| ۱. | **د لوست موضوع** | **د یووالي ګټه** | |
| ۲. | **د زده کړې پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې** | د لوست په پای کې به زده کوونکي لاندې موخې تر لاسه کړي:<br><br>- د یووالي پر ارزښت او اهمیت به پوه شي.<br>- په زده کوونکو کې به د یووالي روحیه پیاوړې شي.<br>- زده کوونکو ته به د یووالي ګټې بیان شي.<br>- په زده کوونکو کې به د وینا او لیک وړتیاوې رامنځته شي.<br>- په زده کوونکو کې به د تخلیقي او نوو لیکنو وړتیاوې وروزل شي.<br>- په متن کې به په راغلو ګرامري برخو پوه شي.<br>- په خپلواک ډول به د متن د پای فعالیتونو د سرته رسولو وړتیا ومومي. | |
| ۳. | **د تدریس لاره** | لوستل، لیکل، پوښتنې او ځوابونه، یوه ځری فعالیت، ډله ییز فعالیتونه | |
| ۴. | **د تدریس توکي** | درسي کتاب، توره دړه، تباشیر، چارت، کتابچه او قلم | |
| ۵. | **د ارزولو لاره او میتود** | شفاهي ارزونه،لیکلي ارزونه، د څارنې ارزونه دښوونکي د یاداشت کتابچه. | |
| ۶. | **په ټولګي کې د ښوونې او زده کړې فعالیتونه** | **لومړني فعالیتونه**: سترې مه شي، حاضري، د کورنۍ دندې کتنه | ۶ دقیقې |
| | | - **د انګیزې رامنځته کول**:<br>د (یووالي ګټه) سرلیک په توره دړه لیکل،<br>د یووالي په هکله په یو څو پوښتنو د لوست پیلول | ۴ دقیقې |

| ۱-۶ | د ښوونکي فعالیتونه | د زده‌کوونکو فعالیتونه | |
|---|---|---|---|
| | - ښوونکی متن په لوړ غږ لولي.<br>- ښوونکی د متن په لوستلو کې له زده‌کوونکو سره مرسته کوي.<br>- ښوونکی د یووالي په اړه ځو ژوندۍ بېلګې راوړي.<br>- ښوونکی د یووالي په اړه یوه روزنیزه کیسه کوي: (سپین ږیری او زامن یې)<br>- ښوونکی د یووالي ګټې بیانوي.<br>- ښوونکی له ښکېلاك څخه د ولسونو په خلاصیدو کې د یووالي پر اهمیت خبرې کوي.<br>- ښوونکی د ځوابونو په ویلو کې له هر زده‌کوونکي سره مرسته کوي.<br>- ښوونکی د ټولګي په وړاندې د وینا لپاره زده‌کوونکي هڅوي.<br>- ښوونکی د لوست لنډیز بیانوي.<br>- ښوونکی په ډله ییز فعالیت کې له زده‌کوونکو سره مرسته کوي.<br>- ښوونکی زده‌کوونکو ته د پوښتنو د ځوابونو لارښوونه کوي.<br>- ښوونکی زده‌کوونکو ته د کورنۍ دندې لارښوونه کوي. | - زده‌کوونکي متن ته غوږ نیسي.<br>- زده‌کوونکي متن له ځان سره لولي.<br>- ځو تنه زده‌کوونکي د مخکیني نوبت له مخې متن د ټولګي په وړاندې لولي.<br>- ځو تنه زده‌کوونکي د یووالي په اړه خپلې تجربې بیانوي.<br>- زده‌کوونکي د یووالي په ګټو پوهیږي.<br>- زده‌کوونکي د یووالي د ارزښت په اړه د ټولګي په وړاندې دوه، دوه دقیقې ویناوې کوي.<br>- زده‌کوونکي د یووالي په لوست کې نوې کلمې یادوي او په جملو کې یې راوړي.<br>- زده‌کوونکي پوښتنو ته ځوابونه وایي.<br>- زده‌کوونکي د ټولګي دننه په ډله ییز فعالیت کې فعاله ونډه اخلي.<br>- زده‌کوونکي په کورونو کې کورنۍ دنده سر ته رسوي. | ۳۵ دقیقې |

**ښوونکي ته د زده‌کړې سرچینې**

ښوونکی دې د یووالي او د هغه د ارزښت په اړه په ژوندیو بېلګو کې زده‌کوونکو ته معلومات ورکړي. (د افغان او پخواني انګلیس)، (افغان او پخواني شوروي) او همدا راز د نورو یرغلګرو په وړاندې د افغانانو جګړې او د هغوی په بریالیتوبونو کې د ولس د یووالي راز.

په هره کورنۍ، کلي، قوم او ملت کې چې یووالي وي، له یوه بل سره مرسته کوي، هغه کورنۍ، کلی، قوم او ولس په خپلو ستونزو بریالی کیږي. په دې معنا چې یووالي او تفاهم د کورنیو، کلو، قومونو او ولسونو ترمنځ د ډېرو ستونزمنو مسالو په باب د خبرو اترو له لارې تفاهم رامنځ ته کوي، نفرت او کینه له منځه وړي، د جګړې لمن ټولوي او پر ځای یې سوله ټینګوي. هو، یووالی په هیواد کې د اړوندو قومونو تر منځ باور رامنځ کوي او بې باوري له منځه وړي. د شخړو او بېځایه زیانونو مخه نیسي. ملي یووالی هر کور، هره کورنۍ، هر کلی او هر ملت ته د سولې پیغام، آرامي او نیکمرغي راوړي او د ژوند ښکلا زیاتوي.

د هیواد قومي او ولسي مشران تل دا ژمنه کوي چې ملي یووالی د سترګو د کسې په شان وساتي، د ځانځانیو مخه ونیسي.

موږ په هره کچه باید یووالی وساتو، ځکه په یووالي کې برکت، نیکمرغي او آرامي پرته ده.

# شلم لوست

## د تدریس وخت: (درې درسي ساعتونه)

| ګڼه | سرلیکونه | موضوعګانې | وخت |
|---|---|---|---|
| ۱. | **د لوست موضوع** | **د سبو ګټې: ورځنۍ اړتیا** | |
| ۲. | **د زده کړې پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې** | د لوست په پای کې به زده کوونکي لاندې موخې تر لاسه کړي:<br><br>- د سبو پر غذایي ارزښت به پوه شي.<br>- د سبو روغتیایي او اقتصادي ګټې به وپېژني.<br>- پر خپل وخت او موسم کې به په خپلو خوړو کې سابه ورځای کړي.<br>- د یوې ځانګړې موضوع په هکله به یې د وینا او لیك د ابداع ځواك پیاوړی شي.<br>- په خپلواك ډول به د متن د پای فعالیتونو د سرته رسولو وړتیا ومومي. | |
| ۳. | **د تدریس لاره** | لوستل، لیکل، پوښتنې او ځوابونه، یوه ځری فعالیت، ډله ییز فعالیتونه | |
| ۴. | **د تدریس توکي** | درسي کتاب، توره دړه، تباشیر، چارت، د امکان په صورت کې ټولګي ته د مختلفو فصلي سبو راوړل، کتابچه او قلم | |
| ۵. | **د ارزولو لاره او میتود** | شفاهي ارزونه،لیکلي ارزونه، د ځارنې ارزونه د ښوونکي د یاداشت کتابچه. | |
| ۶. | **په ټولګي کې د ښوونې او زده کړې فعالیتونه** | **لومړني فعالیتونه:** ستړي مه شي، حاضري، د کورنۍ دندې کتنه | **۶ دقیقې** |
| | | - **د انګېزې رامنځته کول:**<br>- د سبو عنوان په توره دړه لیکل.<br>- د سبو په هکله له زده کوونکو څخه په بېلابېلو پوښتنو لوست پیلیږي.<br>د سبو ارزښت، خام سابه، اومه سابه او دهغوی د خوړو په اړه پام او د روغتیایي ټکو پېژندل. | **۴ دقیقې** |

| ۱-۶ | د ښوونکي فعالیتونه | د زده‌کوونکو فعالیتونه | |
|---|---|---|---|
| | - ښوونکی متن په لوړ غږ لولي.<br>- ښوونکی د متن په لوستلو کې له زده‌کوونکو سره مرسته کوي.<br>- ښوونکی زده‌کوونکو ته د موسمي سبو په اړه معلومات ورکوي.<br>- ښوونکی د سبو د ګټو په هکله د زده‌کوونکو پوهه لوړوي.<br>- ښوونکی د پخو او خامو سبو د خوراك په اړه زده‌کوونکو ته روغتیایي لارښوونې کوي.<br>- ښوونکی د ځوابونو په ویلو کې له هر زده‌کوونکي سره مرسته کوي.<br>- ښوونکی د ټولګي په وړاندې د وینا لپاره زده‌کوونکي هڅوي.<br>- ښوونکی د لوست د لنډیز بیانوي.<br>- ښوونکی په ډله ییز فعالیت کې له زده‌کوونکو سره مرسته کوي.<br>- ښوونکی زده‌کوونکو ته د پوښتنو د ځوابونو لارښوونه کوي.<br>- ښوونکی د کورنۍ دندې لارښوونه کوي. | - زده‌کوونکي متن ته غوږ نیسي.<br>- زده‌کوونکي متن له ځان سره لولي.<br>- څو تنه زده‌کوونکي د پخواني نوبت له مخې متن په لوړ اواز لولي.<br>- زده‌کوونکي د سبو د ګټو په اړه نوي معلومات تر لاسه کوي.<br>- زده‌کوونکي د خامو او پخو سبو د کارولو په ځانګړتیاوو پوهیږي.<br>- زده‌کوونکي د سبو په لوست کې نوې کلمې پیدا کوي او لیکي یې.<br>- زده‌کوونکي د نوبت له مخې د ټولګي په وړاندې د سبو د ګټو په اړه یوه، یوه دقیقه خبرې کوي او وایي چې کوم سابه یې زیات خوښیږي.<br>- زده‌کوونکي پوښتنو ته ځوابونه وایي،<br>- زده‌کوونکي په ډله ییز فعالیت کې فعاله ونډه اخلي.<br>- زده‌کوونکي د متن د وروستۍ برخې په تمرینونو کې ونډه اخلي.<br>- زده‌کوونکي په کورونو کې کورنۍ دندې سر ته رسوي. | ۳۵<br>دقیقې |

**د سبو ګټې:**

د سبو کرنه او کارونه اوږد تاریخ لري. مصریانو له میلاد نه ۲۵۰۰- ۳۰۰۰ کاله مخکې د سبو بیل بیل ډولونه، لکه: پیاز، کاهو، مولۍ، هوږه، ګندنه، بادرنګ، خټکي او نور کرل او خوړل. د وخت په تیریدو سره یو شمیر وحشي او سارایي سابه او بوټي هم د اصلاح شویو سبو په لیکه کې شامل شول. نن ورځ له ډیرو سبو څخه ګټه اخیستل کیږي، چې په اټکلي ډول یې شمېر ۲۴۷ ډولونو ته رسیږي. له دې جملې ۴۰ او یا ۵۰ ډوله سابه اقتصادي اهمیت لري. په پراخه کچه د انسانانو په خوړو او غذا کې کارول کیږي. څیړنو څرګنده کړې ده چې د سبو کرنه او ساتنه په منځنیو پیړیو کې پیل شوي ده. په پنځلسمه پیړۍ کې د لومړي ځل لپاره د امستردام په ښارکې د سبو د پلورلو مارکیټ جوړ شو.
په ۱۲مه پیړۍ کې په انګلستان کې د میوو او سبو پلورلو او رانیولو رواج پیدا کړ.
د سبو او میوو په کرنه او تربیه کې هغه مهال چټک بدلون را منځته شو، چې د امریکا د متحده ایالاتو د لویې وچې سابه لکه: کچالو، رومي بانجان اروپا ته صادر شول او د شپاړسمې پیړۍ تر پایه یې په ټوله اروپا کې رواج پیدا کړ.

په دې ترتیب د سبو په کرنه، تربیه او تولید کې چټکتیا را منځته شوه. په دې معنا چې له لومړنۍ سیمې یې د نړۍ نورو ملکونو او سیمو ته پراختیا وموندله.
په اوولسمه پیړۍ کې په انګلستان کې د سبو تولید په ځانګړو ځایونو، لکه: ګلخانو او نورو خونو کې پیل شو او پراخ مارکیت یې را منځته شو.
په همدې ډول د سبو کرنه په افغانستان کې هم اوږد تاریخ لري. په هغه بوټو کې چې د سبو په ډول په خواړو کې کاریږي او ګټه ترې اخیستل کیږي، نه یوازې کرنیز بوټي، بلکې ځینې سارایي بوټي هم شامل دي. له ۱۲۰۰ څخه زیات ډوله سابه، چې په ۷۸ کورنیو پورې اړه لري، په پراخه کچه په خوړو او غذا کې کاریږي.
هغه سابه چې د سوداګریزو موخو لپاره کرل او تولیدیږي، په دولسو کورنیو پورې اړه لري. ځینې سابه لکه: کدو، پلي، رومي بانجان ، مرچ، توربانجان او نور له اقتصادي پلوه هم ډیر اهمیت لري. ډیر سابه پریمانه منرالونه، ویټامینونه، کلسیم، اوسپنه، پروټین او نور لري، چې په خوړلو سره یې د بدن اړتیاوې پوره کیږي. سابه روغتیا ته ګټه لري او د ډیرو ناروغیو مخه نیسي.

# یوویشتم لوست

## د تدریس وخت: (درې درسي ساعتونه)

| ګڼه | سرليکونه | موضوعګانې | وخت |
|---|---|---|---|
| **۱**. | **د لوست موضوع** | **چاپېريال څنګه وساتو؟** | |
| **۲**. | **د زده کړې پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي موخې** | د لوست په پای کې به زده کوونکي لاندې موخې تر لاسه کړي:<br><br>- د خپل ژوند چاپېريال به وپېژني.<br>- د خپل چاپېريال د ښکلي کولو او له هغې څخه د سمې ګټې اخيستنې ورتيا به په کې رامنځته شي.<br>- په زده کوونکو کې به له چاپېريال سره د مينې او علاقې احساس رامنځته او پياوړی شي.<br>- د چاپيريال په خړوبې، پاکې او ښکلي ساتلو کې به په کې هڅه او هاند رامنځته شي.<br>- په زده کوونکو کې به د وينا او ليک ورتياوې رامنځته شي.<br>- په زده کوونکو کې به د ښکلا پېژندلو ورتياوې ځواکمنې شي.<br>- په خپلواک ډول به د متن د پای فعاليتونو د سرته رسولو ورتيا ومومي. | |
| **۳**. | **د تدريس لاره** | لوستل، ليکل، پوښتنې او ځوابونه، يوه ځری فعاليت، ډله ييز فعاليتونه | |
| **۴**. | **د تدريس توکي** | درسي کتاب، توره دړه، تباشير، چارت، د پاك چاپېريال يوه منظره، کتابچه او قلم | |
| **۵**. | **د ارزونې لاره او ميتود** | شفاهي ارزونه، ليکلي ارزونه، د خارنې ارزونه. | |
| **۶**. | **په ټولګي کې د ښوونې او زده کړې فعاليتونه** | **لومړني فعاليتونه**: سترې مه شي، حاضري، د کورنۍ دندې کتنه | ۶ دقيقې |
| | | - **دانګيزې رامنځته کول**:<br>- د چاپېريال سرليک په توره دړه ليکل.<br>- د چاپېريال په اړه د يو څو پوښتنو او يا د چاپيريال د ښکلې منظرې په ښوولو د نوي لوست پيل، | ۴ دقيقې |

| ۶-۱ | د ښوونکي فعالیتونه | د زده‌کوونکو فعالیتونه | |
|---|---|---|---|
| | - ښوونکی متن په لوړ غږ لولي.<br>- ښوونکی د متن په لوستلو کې له زده‌کوونکو سره مرسته کوي.<br>- ښوونکی د چاپېریال په اړه لازم معلومات وړاندې کوي.<br>- ښوونکی د یو ښه او رغنده چاپېریال د ځانګړتیاوو په هکله خبرې کوي.<br>- ښوونکی د یو ښه او ناپاك چاپېریال د ښښو او ځانګړتیاوو د پرتلې کولو له لارې د زده‌کوونکو پوهه زیاتوي.<br>- ښوونکی زده‌کوونکو ته د کورني چاپېریال د پاك او منظم ساتلو په اړه لارښوونې کوي.<br>- ښوونکی د ځوابونو په ویلو کې له هر زده‌کوونکي سره مرسته کوي.<br>- ښوونکی د وینا لپاره د ټولګي په وړاندې زده‌کوونکي هڅوي.<br>- ښوونکی د لوست لنډیز بیانوي،<br>- ښوونکی په ډله ییز فعالیت کې له زده‌کوونکو سره مرسته کوي.<br>- ښوونکی زده‌کوونکو ته د پوښتنو د ځوابونو لارښوونه کوي.<br>- ښوونکی کورنۍ دنده ورکوي. | - زده‌کوونکي متن ته غوږ نیسي.<br>- زده‌کوونکي له ځان سره متن لولي.<br>- څو تنه زده‌کوونکي د مخکینې نوبت له مخې متن لولي.<br>- زده‌کوونکي د چاپېریال په اړه خپل معلومات زیاتوي.<br>- زده‌کوونکي د یو ناپاك او خراب او ښه او رغنده چاپېریال ښښې بیانوي.<br>- زده‌کوونکي په وار د یو روغ او سمسور چاپېریال په رامنځته کولو او ساتلو کې د ونډې د اخیستو لارې چارې بیانوي.<br>- زده‌کوونکي نوې کلمې یادوي او په جملو کې یې کاروي.<br>- زده‌کوونکي په وار سره د ټولګي په وړاندې د خپلې خوښې د یوې موضوع په اړه یوه یوه دقیقه خبرې کوي.<br>- زده‌کوونکي پوښتنو ته ځوابونه وایي،<br>- زده‌کوونکي په ډله ییز فعالیت کې فعاله ونډه اخلي.<br>- زده‌کوونکي د متن د وروستۍ برخې پوښتنو ته ځوابونه وایي.<br>- زده‌کوونکي په کورونو کې کورنۍ دنده سر ته رسوي. | ۳۵<br>دقیقې |

**د متن پوښتنو ته ځوابونه**:

ښوونکی دې زده‌کوونکو ته ووایي چې د لوست د وروستۍ برخې جدول په جلا پاڼه کې ولیکي. بیا دې د چاپېریال کلمه،چې له دویمې کرښې پیل شوې، درېمه کرښه یې نیولې او بېرته دویمې وروستۍ کرښې ته ختلې په خپله خوښه رنګه کړي.

**۸ - ښوونکي ته د زده‌کړې سرچینې**:

د ژوند کولو ځای ته چاپېریال وایي. په دې کې د یو ژوندي موجود شاوخوا ټول شیان او توکي چې په یو ډول نه په یو ډول یې ژوند تراغېز لاندې راولي، شامل دي. د انسان د ژوند په چاپېریال کې د هغه کور، د کور شاوخوا، اوبه، ځمکه، چمنونه، ونې، باغونه، سیندونه، غرونه، ځنګلونه او داسې نور شامل دي. دا هر یو په خپل وار د انسان او بل هر ژوندي موجود پر ژوند مستقیم او غیرمستقیم ډول اغېز کوي.

د هرې ورځې په تېرېدو د انسانانو شمېر زیاتیږي. د تازه معلوماتو (۱۳۸۸ لمریز) له مخې په منځني ډول هره ورځ

شاوخوا درې سوه درې پنځوس زره ماشومان زیږي او شاوخوا ۱۴۲ زره خلک مري. په دې توګه هره ورځ د نړۍ په نفوس کې له دوو سوو زرو څخه زیات زیاتوالی رامنځته کیږي. د نفوسو دا زیاتوالی پر چاپېریال اغېز کوي؛ هغوی د استوګنې ځای ته اړتیا لري؛ اوبه اوخواړه غواړي؛ جامې، پوښاک او درمل غواړي؛ ښوونې او روزنې ته اړتیا لري او په سلګونو نورې داسې اړتیاوې. په داسې حال کې چې د چاپېریال یو شمېر توکي د نفوسو په څېر نه زیاتیږي او موجوده اندازه یې د لګښت له مخې پای ته رسیږي. لکه ونې او ځنګلونه (که ووهل شي او نور یې پر ځای کښېننول شي.)، کانې زېرمې، کرنیزې ځمکې او نور.

په چاپېریال کې ژوندي او ناژوندي موجودات شته. ژوندي موجودات په خپل منځ او همدارنګه له ناژوندیو موجوداتو، لکه: خاورې، اوبو، ګازونو او نورو سره متقابلې اړیکې لري. دا اړیکې د ژوند چاپېریال ته ډېرې اړینې دي. د ایکو سیستم دا اړیکې څېړي. هغه سیستم چې د ایکو سیستم (Eco System) څېړي، د ایکولوژۍ (Ecology) په نامه یادیږي.

د چاپېریال د پاک ساتنې موضوع په روانې پېړۍ کې د ټولو اوسیدونکو د اندېښنې وړ ګرځېدلې. زموږ د ژوند چاپېریال ورځ په ورځ ککړیږي او د ژوندیو موجوداتو ژوند ته ګواښ رامنځته کوي. نننۍ نړۍ د بشري تمدن د پرمختګ، د معاصرې تکنالوژۍ پر پراختیا او د نفوسو د زیاتوالي له امله په ځمکې او هوا کې د ککړتیا له ستونزو سره مخامخ شوې ده. د روغتیایي ربوټونو له مخې د همدې ککړتیا له امله د نړۍ د نفوسو په سلو کې شل بېلا بېلې ناروغۍ ګواښوي. جګړې او په جګړو کې د مختلفو وسلو کارول یو بل ګواښ دی چې چاپېریال ککړوي. په جګړو کې د ځنګلونو له منځه وړل، د کروندو او اوبو زهري کول او داسې نور هغه کارونه دي چې د ژوند کړۍ تنګوي او ستونزې زیږوي.

د اوسني پېر یوه بله ډېره مهمه ستونزه د اوبو ککړتیا ده. دا ستونزه د ټکنالوژۍ او صنایعو په پرمختګ لاپسې پراخه شوې ده. د نوي صنعت لپاره د ډېرو سکاره او تېل انرژي تولیدوي. ددې توکو زیاته کارونه چاپېریال، په تېره بیا اوبه او زېرمې ککړوي.

کولای شو د باغونو، شنو سیمو، پارکونو او د سیل د ځایونو د جوړولو له لارې خپل چاپېریال خوندي کړو. د شنو سیمو جوړول ژوندي موجودات له ګواښ څخه ژغوري. ځنګلونه چې پخپله یوه ژوندۍ ټولنه ده، د چاپېریال عمده توکي دي. د ځنګلونو وهل او د ونو پرې کول، نه یوازې چاپېریال له ګواښ سره مخامخ کوي، بلکې په هغې کې د موجودو ژوو ژوند ته هم سترګواښ بلل کیږي.

د چاپېریال ساتنه د یو ځانګړي شخص، یا ټولنې او کومې موسسې کار نه دی. دا د هر چا دنده ده چې په خپل وار، له خپل نږدې چاپېریال، کور، څخه نیولې بیا د خپل ښار او پارکونو د پاکولو له لارې خپل چاپېریال ځانته ورغوي. د ونو کرل، د پارکونو جوړول، د ځنګلونو او په هغې کې د شتو ژوو ساتل او د هغوی حمایت، له اوبو څخه په ټاکلې اندازه ګټه اخیستل، د هغو توکو لږ کارول یا نه کارول چې لوګي یې هوا ککړوي او ډېرې نورې هغه لارې چارې دي چې هرڅوک کولای شي تر خپلې وسې پورې یې عملي کړي او په دې توګه د چاپېریال د ککړتیا مخه ونیسي.

# دوه ویشتم لوست

## د تدریس وخت: (درې درسي ساعتونه)

| ګڼه | سرلیکونه | موضوعګانې | وخت |
|---|---|---|---|
| ۱. | **د لوست موضوع** | **ژبه او ګرامر** | |
| ۲. | **د زده کړې پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې** | د لوست په پای کې به زده کوونکي لاندې موخې تر لاسه کړي:<br>- د ژبې په مفهوم او معنا به پوه شي.<br>- د ژبې د جوړښت او ګرامر په اړه به يې معلومات زیات شي.<br>- د ګرامر له زده کړې سره به يې مینه پیدا شي.<br>- د ژبې په زده کړې به د ګرامر پر ارزښت پوه شي.<br>- د پښتو د لومړني ګرامر په اړه به معلومات تر لاسه کړي.<br>- په وینا او لیک کې به يې وړتیا پیاوړې شي.<br>- په خپلواک ډول به د متن د پای فعالیتونو د سرته رسولو وړتیا ومومي. | |
| ۳. | **د تدریس لاره** | لوستل، لیکل، پوښتنې او ځوابونه، یوه ځری فعالیت، ډله ییز فعالیتونه | |
| ۴. | **د تدریس توکي** | درسي کتاب، توره دړه، تباشیر، چارت، د پاك چاپېریال یوه منظره، کتابچه او قلم | |
| ۵. | **د ارزولو لاره او میتود** | شفاهي ارزونه، لیکلې ارزونه، د ځارنې ارزونه د ښوونکي د یاداشت کتابچه | |
| ۶. | **په ټولګي کې د ښوونې او زده کړې فعالیتونه** | **لومړني فعالیتونه**: ستړي مه شې، حاضري، د کورنۍ دندې کتنه | **۶ دقیقې** |
| | | - **دانګېزې رامنځته کول**:<br>- د ژبې د ارزښت په اړه له زده کوونکو څخه څو پوښتنې، زده کوونکو ته د ژبې د جوړښت د زده کړې د اهمیت په هکله معلوماتو د ورکولو له لارې د نوي لوست پیلول. | **۴ دقیقې** |

| ۱-۶ | د ښوونکي فعالیتونه | د زده‌کوونکو فعالیتونه | |
|---|---|---|---|
| | - ښوونکی متن په لوړ اواز لولي.<br>- ښوونکی د متن په لوستلو کې له زده‌کوونکو سره مرسته کوي.<br>- ژبه څه شی دی؟ ښوونکی په دې هکله زده‌کوونکو ته معلومات ورکوي.<br>- ښوونکی د ژبې او د هغې د جوړښت پر اهمیت خبرې کوي.<br>- ښوونکی د پیر محمد کاکړ د پښتو په گرامر او د هغې د لیکلو د اړتیا په هکله خبرې کوي.<br>- ښوونکی د ځوابونو په ویلو کې له زده‌کوونکو سره مرسته کوي.<br>- ښوونکی د وینا لپاره د ټولگي په وړاندې زده‌کوونکي هڅوي.<br>- ښوونکی د لوست لنډیز بیانوي.<br>- ښوونکی په ډله ییز فعالیت کې له زده‌کوونکو سره مرسته کوي.<br>- ښوونکی زده‌کوونکو ته د متن د وروستۍ برخې د پوښتنو د ځوابونو لارښوونه کوي.<br>- ښوونکی د کورنۍ دندې لارښوونه کوي. | - زده‌کوونکي متن ته غوږ نیسي.<br>- زده‌کوونکي متن له ځان سره لولي.<br>- څو تنه زده‌کوونکي د مخکینې نوبت له مخې متن لولي.<br>- زده‌کوونکي د ژبې په معنا او تعریف ځان پوهوي.<br>- زده‌کوونکي د ژبې د جوړښت پر اهمیت پوهیږي.<br>- زده‌کوونکي د پښتو ژبې د لومړني گرامر لیکونکي په توگه د پیر محمد کاکړ له نوم سره اشنایي پیدا کوي.<br>- زده‌کوونکي نوې کلمې یادوي او په جملو کې یې راوړي.<br>- زده‌کوونکي په خپله خوښه د ټولگي په وړاندې خبرې کوي.<br>- زده‌کوونکي پوښتنو ته ځوابونه وایي.<br>- زده‌کوونکي په ډله ییز فعالیت کې فعاله ونډه اخلي،<br>- زده‌کوونکي له مرستې پرته د متن د وروستۍ برخې پوښتنو ته ځوابونه وایي،<br>- زده‌کوونکي په کورونو کې کورنۍ دنده سر ته رسوي. | ۳۵<br>دقیقې |

**د متن پوښتنو ته ځوابونه:**

**۸ - ښوونکي ته د زده‌کړې سرچینې**

**د ژبې او گرامر په هکله اضافي معلومات**

انسان د لوی خدایﷻ ترټولو مخلوقاتو غوره مخلوق دی. د لوړفکر، عقل او خبرو د قوت له امله پرټولو کایناتو لوړاوي لري. هغه څه چې د افکارو د څرگندولو ډېره ښه وسیله کیدای شي او انسان ته پر نورو حیواناتو جلا امتیاز وربخښي هغه د وینا او خبرو کولو جوهر دی. که څه هم دغه قوه د بشرله غوره صفاتو څخه ده، خو د کمال پولې ته د رسیدو لپاره یې د ځینو پړاوونو وهل لازم دي. لکه چې څرگنده ده، انسان په پیل کې سمې خبرې نه شوې کولای. د خپلو افکارو او موخو د څرگندولو لپاره یې له اشارو او د غړو له حرکاتو څخه، چې له یو لړ آوازونو سره ملگري وو، کار اخیست. دغه لومړنۍ وسیله په کوچنیانو او گونگیو او د یوې ژبې په نویو زده‌کوونکو کې لیدل کیږي. البته وروسته د وخت په تیریدو حنجرې د آوازونو او د غړونو د خارجیدو استعداد پیدا کوي او هرغړ ځانته

جلاجلا مخرجونه مومي. په دغه وخت کې نوموړي آوازونه د تورو او الفاظو په بڼه څرګندیږي. د افکارو او مطلبونو او مقاصدو لپاره یوه وسیله رامنځ ته کیږي چې هغه ژبه نومیږي.
که په لنډه توګه ووایو هغه بیل بیل آوازونه چې موږیې له خولې څخه و باسو، که د کمال پړاوته ورسیږي، په منظمه توګه له یوبل سره ګډ، د الفاظو او کلماتو په بڼه د افکارو د څرګندولو او د یوبل پوهولو راپوهولو لپاره استعمال شي، ژبه نومیږي.
په دې معنا چې ژبه یوه داسې طریقه او لاره ده چې یو شخص د هغې په وسیله خپل افکار څرګندولی شي.
په دې پوهیږو چې د غږونو د یو ځای کولو نه صوتي کلمې او د پوهولو لپاره د یو شمیر کلمو له استعمال او کارولو څخه د خبروکولو ژبه رامنځ ته کیږي. که د خبرو کولو ژبه او په بل عبارت نوموړي منظم او مرکب آوازونه د لیکلوپه بڼه راوړل شي، لیکلې ژبه ورته ویل کیږي.
لکه چې معلومه ده انسانانو لومړی د پوهولو او راپوهولو لپاره د خبرو کولو ژبه رامنځته کړی او بیایې له دې امله چې آوازونه ورکیدونکي او له منځه تلونکي دي او سر بیره په دې په غیاب کې هم له هغه څخه کار نه اخیستل کیږي، د آوازو په مقابل کې علامې او نښې اختراع کړې چې هغو ته توري(الفبې) او حروف وایي. په نتیجه کې د هغو له ترکیب او ګډون څخه نښې او لیک منځته راغې. په دې ترتیب آوازونه د افکارو نماینده او حروف او اشکال د آوازونو د نماینده بڼه نیولې ده. ځکه خو ویلاي شو چې لیکنۍ ژبه پیړۍ پیړۍ وروسته رامنځ ته شوې ده.
خبرې او لیکنې آوازونه او توري دواړه داړتیاوو په پوره کولو، پوهولو او راپوهولو کې ستره دنده لري. وروسته انسانانو د تجربو او د ژوندانه د اړتیاوو له مخې او همدارنګه د ژبې د زده‌کړې اوله غلطیو څخه د خوندي پاتې کیدو لپاره یو شمیر قواعد او اصول راوایستل او د ژبې د قواعدو په نوم یې ونومول. په پای کې یې نوموړو قواعدو پراختیا وموندده، چې نه شلیدونکې لړۍ یې په هره ژبه کې جاري ده. په دې لړ کې موږ د پښتو ژبې د قواعدو په څیړنې او لیکنې لاس پورې کړ. لکه څنګه چې د قواعدو په لیکنه کې د هرې ژبې خبرې او ویناوې یولوی بنسټ او اساس دی، نو تر هر څه د مخه خبرې اترې او محاوره په پام کې نیسو او له هغې څخه قواعد راباسو. که څه هم ژبه مستقیماً له جملو او کلام څخه عبارت ده او باید چې تر هر څه لومړی دهغې په هکله بحث وشي، مګر قواعد لیکونکي د بحث د آسانی لپاره مفردات یا اجزا یعنې کلمې وړاندې کړي دي او په همدې اساس د یوې ژبې د قانون په هکله ټول بحثونه په لاندنیو څو برخو ویشي:
لومړی برخه د ژبې د ساده غږونو له پیژندنې څخه عبارت ده او دې ته غږ پوهنه وایي.
دویمه برخه دګډو او مخلوطو غږونو د پیژندنې یعنې د الفاظو، کلماتو او د هغو د اوصافو او حالاتو د بیانولو په هکله ده، چې دې ته ویي پوهنه وایي.
دریمه برخه د کلماتو د خپل منځي اړیکو د پیژندنې او په جملو کې د هغې کارولو ته نحو وایي.
څلورمه برخه د کلماتو د حروفو او الفاظو صحیح او سمه لیکنه ده، چې املا پوهنه نومیږي.
د یوې ژبې د ټولو کیفیتونو پیژندنه په مجموعي توګه د یوې ژبې قواعد، قانون او ګرامر بلل کیږي، چې ژبښودنه یا پښویه ورته وایي.
**ګرامر**:
ټول هغه قواعد او قوانین چې موږ د پښتو ژبې له سمو ویلو او سمو لیکلو څخه خبروي د پښتو ژبې قانون یا ګرامر دی.
یا په بل عبارت: ګرامر د هغو قواعدو له مجموعې څخه عبارت دی، چې هغه د یوې ژبې د سمو ویلو او سمولیکلو لپاره لازمي او حتمي دی.

# درویشتم لوست

## د تدریس وخت: (درې درسي ساعتونه)

| ګڼه | سرلیکونه | موضوعګانې | وخت |
|---|---|---|---|
| ۱. | **د لوست موضوع** | **د نشې زیانونه** | |
| ۲. | د زده کړې پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې | د لوست په پای کې به زده کوونکي لاندې موخې تر لاسه کړي:<br>- د نشې په زیانونو به پوه شي،<br>- د نشې د زیانونو په اړه به یې معلومات پراخه شي.<br>- د نشې او نشه یي توکو په هکله به ورسره کرکه پیدا شي.<br>- د نشه یي توکو د قاچاق، ترافیک او زېرمې له امله د هېواد نړیوال حیثیت د راټیټېدلو پر لاملونو به پوه شي.<br>- ددې وړتیا به په کې ورو زل شي چې په نورو ځوانانو کې د نشه یي توکو د احتمالي کارونې مخه ونیولای شي.<br>- د تخلیقي او نوو لیکنو او وینا وړتیا به پکې ورو زل شي.<br>- په خپلواک ډول به د متن د پای فعالیتونو د سرته رسولو وړتیا ومومي. | |
| ۳. | د تدریس لاره | لوستل، لیکل، پوښتنې او ځوابونه، یوه ځری فعالیت، ډله ییز فعالیتونه | |
| ۴. | د تدریس توکي | درسي کتاب، توره دړه، تباشیر، چارت، د یو معتاد سړي د بدې ورځې یو انځور، کتابچه او قلم | |
| ۵. | د ارزولو لاره او میتود | شفاهي ارزونه،لیکلي ارزونه، د څارنې ارزونه، د ښوونکي د یاداشت کتابچه. | |
| ۶. | په ټولګي کې د ښوونې او زده کړې فعالیتونه | **لومړني فعالیتونه**: ستړي مه شي، حاضري، د کورنۍ دندې کتنه | ۶ دقیقې |
| | | - **د انګېزې رامنځته کول**:<br>- (د نشې زیانونه: د بدمرغه ژوند پیل) سرلیك په توره دړه لیکل،<br>- په نشې باندې د یو معتاد د ژوند په هکله د معلوماتو په ورکولو او د زده کوونکو د خپلو شخصي تجربو له مخې په نوي لوست پیل | ۴ دقیقې |

| ۱-۶ | د ښوونکي فعالیتونه | د زده‌کوونکو فعالیتونه | |
|---|---|---|---|
| | - ښوونکی متن په لوړ غږ لولي.<br>- ښوونکی د متن په لوستلو کې له زده‌کوونکو سره مرسته کوي.<br>- ښوونکی د نشې په روغتیایي، اقتصادي او ټولنیزو زیانونو رڼا اچوي.<br>- ښوونکی پر نشې د یو روږدي شخص د ژوند په اړه خبرې کوي.<br>- ښوونکی د نشه یي توکو د کرکیلې، قاچاق او سوداګرۍ له امله د هېواد حیثیت ته د زیان د رسیدو په اړه معلومات ورکوي.<br>- ښوونکی د ځوابونو په ویلو کې له زده‌کوونکو سره مرسته کوي.<br>- ښوونکی د وینا لپاره د ټولګي په وړاندې زده‌کوونکي هڅوي.<br>- ښوونکی د لوست لنډیز بیانوي.<br>- ښوونکی د ډله ییز فعالیت په سرته رسولو کې له زده‌کوونکو سره مرسته کوي.<br>- ښوونکی زده‌کوونکو ته د متن د وروستۍ برخې د پوښتنو د ځوابونو لارښوونه کوي.<br>- ښوونکی کورنۍ دنده ورکوي. | - زده‌کوونکي متن ته غوږ نیسي.<br>- زده‌کوونکي متن له ځان سره لولي.<br>- څو تنه زده‌کوونکي د مخکینې نوبت له مخې متن د ټولګي په وړاندې لولي.<br>- زده‌کوونکي د نشې په هکله په جملو کې د متن یو څو کلمې کاروي.<br>- زده‌کوونکي د نشې په روغتیایي، اقتصادي او ټولنیزو زیانونو ځانونه پوهوي.<br>- زده‌کوونکي په خپله سیمه کې د کوم معتاد سړي د ژوند د څرنګوالي په اړه له نورو زده‌کوونکو سره خپلې لیدنې کتنې شریکوي.<br>- څو تنه زده‌کوونکي د مخکینې نوبت له مخې د ټولګي په وړاندې د نشې د زیانو په هکله خبرې کوي.<br>- زده‌کوونکي د متن د وروستۍ برخې پوښتنو ته ځوابونه وایي.<br>- زده‌کوونکي په ډله ییز فعالیت کې فعاله ونډه اخلي. | ۳۵<br>دقیقې |

**د متن پوښتنو ته ځوابونه**

د (کوکنار) په نوم د ورکړې شوي چوکاټ کلمې په لاندې ډول دي:

۱ - مجرم
۲ - معتاد
۳ - مست
۴ - سړی
۵ - لتي
۶ – ایچ، آی، وي
۷ – عمل
۸ - لېونی
۹ - وژنه
۱۰ - نشه
۱۱ - غلا

**ښوونکي ته د زده‌کړې سرچينې:**
ټول هغه شيان چې نشه راوړي، د اسلام سپېڅلي دين يې کارول حرام ګڼلي دي او لارښوونه يې کړې ده چې بايد خپل ځانونه ورڅخه لرې وساتو.
پر نشې باندې په روږدي کېدو سره د بدن د کاراو فعاليت توان کمزوری کيږي. په نشه روږدي کسان کارنشي کولای، ځانته او خپلې کورنۍ ته نفقه نشي پيداکولی، نه خپل حقوق پېژني او نه د نورو. داډول کسان په ټولنه کې ځانګړی او يوازې ژوند کوي. له خپلوانو او دوستانو سره اړيکې نشي ساتلای او نه له نورو خلکو سره ناسته و لاړه کولی شي. له دې امله په لومړي پړاو کې د خپلې کورنۍ او بياد ټولنې د اوږو بار وي. نشه يې توکي ډېر ډولونه لري، له هغو څخه يو يې چرس دي. دلته يې په څرنګوالي او زيانونو خبرې کوو.
چرس هغه زيان رسوونکی نشه يي توکي او يوه توربخنه او شين رنګه ماده ده، چې د بنګو له بوټي څخه جوړيږي. له څېړنو څرګنده شوي ده چې انسانان له ډېرې پخوا زمانې څخه د دغه نشه يې توکي سره آشنا وو.
له هغه د نشې او نورو هدفونو لپاره کار اخيستل کيږي، چې اصلي ځای يې چين ګڼل شوي دي. د چرسو د مادې ټول اجزا نشه يي ځانګړتياوې لري. له روغتيايي څېړنو څخه جوتيږي، چې دغه ماده د انسان حافظه کمزورې کوي، د بدن توازن خرابوي او پر دماغ بده اغيزه کوي.
چرس ډېره روږدي کېدونکي ماده لري چې نورو نشه يي توکو، لکه: هيروينو او اپينو ته لار هواروي. د چرسو کارونه د زړه ټکان پيداکوي، د سترګو سوروالي، روحي ګډوډي، د اعصابو کمزوري او د وجود تعادل يا موازنې کنترول له منځه وړي. روږدي کسان دا عادت په اسانۍ سره نه شي پرېښودلای. په دغه ناوړه نشه روږدي کسان په ټولنه کې خپل مقام او ارزښت له لاسه ورکوي، خلک ورته په سپکه سترګه ګوري.
لکه چې وايي: (چرسي سړي، نه سړي). بايد يادونه وکړو چې نه يوازې چرس، بلکې ټول نشه يې توکي همدغه خصوصيات لري.
موږته په کار ده چې له ټولو نشه يي توکو چې د اسلام سپېڅلي دين ناروا بللي دي، په کلکه ډډه وکړو او د دغو توکو په زيانونو ځانونه وپوهوو. له کښت، کارولو او کاروبار څخه يې ځانونه وژغورو.
هغه کسان چې په نشه يي توکو، لکه: چرسو، هيروينو، اپينو او نورو روږدي دي، بايد ژر تر ژره روغتيايي مرکزونو ته ور وپيژندل شي، چې درمل يې وشي او له دې وژونکې بلا څخه د خلاصون په هکله ور سره مرسته وشي. هغو کورنيو ته چې کوم يوغړی يې له دې ځورونکې ناروغۍ سره لاس او ګريوان دی، په کاردي چې مرسته ورسره وکړي او د درملنې په هکله بې تفاوته پاتې نه شي. ((نشه کول د دين او دنيا زيان دی))

## څلرويشتم لوست

### د تدريس وخت: (درې درسي ساعتونه)

| ګڼه | سرليکونه | موضوعګانې | وخت |
|---|---|---|---|
| ۱. | **د لوست موضوع** | **د ماين خطرونه: د جګړې بدغوني پاتې شونې** | |
| ۲. | **د زده کړې پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي موخې** | د لوست په پای کې به زده کوونکي لاندې موخې تر لاسه کړي:<br>- د پرسونل ضد ماينونو او ناچاودو توکو بڼې او زيانونه به وپېژني.<br>- د ماينونو او ناچاودو توکو له احتمالي خطر څخه به د ځان او نورو د ژغورلو وړتيا پيدا کړي.<br>- د ماينونو او ناچاودو توکو له قربانيانو سره به د ښه سلوك او مرستې روحيه رامنځته کړای شي.<br>- د هغو سيمو د پېژندلو وړتيا به په کې پيدا شي چې کېدای شي ماينونه او ناچاودې توکي په کې موجود وي.<br>- په زده کوونکو کې به د خبرو کولو او ليکلو وړتياوې رامنځته شي.<br>- په خپلواك ډول به د متن د پای فعاليتونو د سرته رسولو وړتيا ومومي. | |
| ۳. | **د تدريس لاره** | لوستل، ليکل، پوښتنې او ځوابونه، يوه ځری فعاليت، ډله ييز فعاليتونه | |
| ۴. | **د تدريس توکي** | درسي کتاب، توره دړه، تباشير، چارت، د ماينونو او ناچاودو توکو د نمونو چارت، کتابچه او قلم | |
| ۵. | **د ارزولو لاره او ميتود** | شفاهي ارزونه،ليکلي ارزونه، د څارنې ارزونه، د ښوونکي د يادداشت کتابچه | |
| ۶. | **په ټولګي کې د ښوونې او زده کړې فعاليتونه** | **لومړني فعاليتونه**: سترې مه شې، حاضري، د کورنۍ دندې کتنه. | ۶ دقيقې |
| | | - **دانګېزې رامنځته کول**:<br>- ټولګي ته د څو ماينونو مصنوعي بڼو راوړل.<br>- د ماينونو او ناچاودو توکو د زيانو په اړه له زده کوونکو څخه پوښتنې کول.<br>د ماينونو او يا ناچاودو توکو د معيوبيت او پېښو په اړه د زده کوونکو د ليدلي حال بيان او په دې توګه د لوست پيلول. | ۴ دقيقې |

| ۱-۶ | د ښوونکي فعالیتونه | د زده‌کوونکو فعالیتونه | |
|---|---|---|---|
| | - ښوونکی متن په لوړ اواز لولي.<br>- ښوونکی د متن په لوستلو کې له زده‌کوونکو سره مرسته کوي.<br>- ښوونکی د ماینونو او ناچاودلو توکو د شتون او د هغې د علت په اړه زده‌کوونکو ته معلومات ورکوي.<br>- ښوونکی د جنګي وسیلې په توګه د ځمکنیو ماینونو کارونه (استعمال) غندي.<br>- ښوونکی د ماینونو او ناچاودو توګو د احتمالي شتون د سیمو د څرنګوالي په اړه زده‌کوونکو ته معلومات ورکوي.<br>- ښوونکی د ماین د خطر په هکله د خبرتیا په غونډوکې د ګډون لپاره زده‌کوونکي هڅوي.<br>- ښوونکی د ځوابونو په ویلو کې له هر زده‌کوونکي سره مرسته کوي.<br>- ښوونکی د وینا لپاره د ټولګي په وړاندې زده‌کوونکي هڅوي.<br>- ښوونکی په ډله ییز فعالیت کې له زده‌کوونکو سره مرسته کوي.<br>- ښوونکی کورنۍ دنده ورکوي. | - زده‌کوونکي متن ته غوږ نیسي.<br>- زده‌کوونکي متن له ځان سره لولي.<br>- څو تنه زده‌کوونکي د نوبت له مخې د ټولګي په وړاندې متن لولي.<br>- زده‌کوونکي د ماینونو او ناچادو توکو بڼې پېژني.<br>- زده‌کوونکي د ماینونو او ناچاودو توکو د سیمو نښې پېژني.<br>- زده‌کوونکي د ماینونو سیمې ته په ناخبرۍ له ورننوتلو وروسته د بېرته خوندي راستنېدو په لارو چارو ځانونه پوهوي.<br>- زده‌کوونکي د ماین لوست نوې کلمې یادوي او په جملو کې یې کاروي.<br>- زده‌کوونکي په خپله خوښه د ټولګي په وړاندې د ماین د خطر په اړه یوه دقیقه خبرې کوي.<br>- زده‌کوونکي پوښتنو ته ځوابونه وایي،<br>- زده‌کوونکي په ډله ییز فعالیت کې فعاله ونډه اخلي.<br>- زده‌کوونکي په کورنو کې کورنۍ دنده سر ته رسوي. | ۳۵ دقیقې |

**ښوونکي ته د زده‌کړې سرچینې**

زموږ په هیواد کې د تېرو لسیزو جګړو په اوږدو کې د دښمن د مرګ او ژوبلې په موخه له ډول ډول وسلو څخه کار اخیستل شوی دی. ماینونه هم له دې ډول وسلو څخه دي، چې کارونه یې د بې ګناه انسانانو ژوند اخلي. ماینونه د هغو خطرناکو او وژونکو وسلو له ډلې څخه دي، چې په کارولو یې مرګ ژوبله رامنځ ته کیږي. په جګړه کې ښکیل دواړه لوري یو بل ته د ځاني او مالي زیان رسولو په موخه له ماینونو څخه دیوې اغیزمنې وسلې په توګه کار اخلي.

په عمومي ډول ماینونه دوه ډوله لري.

۱- د پرسونل ضد ماینونه ۲- د وسایطو ضد ماینونه

د پرسونل ضد ماینونه: هغه چاودیدونکي توکي دي، چې له اوسپنې، پلاستیک او لرګي څخه په بېلا بېلو بڼو، لکه: د لوبو شیان، قلمونه، رادیوګانې او نور جوړ دي او په منځ کې یې ناچاودلي مواد ځای پر ځای شوي وي. د بدن د غړو یا هر ډول ټاکلي فشار په وسیله چوي او مرګ ژوبله رامنځته کوي.

۲- د وسایطو ضد ماینونه: دا ماینونه بیل بیل ډولونه لري، چې د وسایطو، لکه: موټرو، لاریو، ټانکونو او نورو د فشار په واسطه چوي. ځاني او مالي مرګ ژوبله رامنځته کوي. د ماینونو پیژندل ستونزمن کار دی، ځکه چې ډیر یې په ځمکه کې ښخ او یا د عادي شیانو په بڼه وي. له دې امله په دې اړه غور او احتیاط په کار دی. موږ ته په کار دي چې له دغه خطر ناک دښمن ځخه ځانونه وساتو.

له ماین ځخه د ډکو سیمو د پیژندلو او ناچاودلو توکو په باب معلومات تر لاسه کړو. ماینونه په ځانګړو سیمو، لکه امنیتي پوستو او پوځي مرکزونو کې اینښودل کیږي. ناچاودي توکي زیاتره د ځمکې پر سر پراته وي. دا هغه مهمات دي چې د جګړو پر مهال چاودلي نه دي. په دې مهماتو کې توغندي، د بمونو ټوټې، لاسي بمونه، د ټانک، توپ، ماشیندار و ګولۍ او نور شامل دي.

ماینونه او ناچاودي توکي زیاتره په لاندې ځایونو کې پیدا کیږي.

په هغو لارو او مرکزو کې چې تګ راتګ پرې ډیر نه کیږي، د موټرو د راګرځیدو په سیموکې، د پلونو او پلچکونو د ننه او شاوخوا کې، د پوځي پوستو او ویجاړو شوو وسایطو په شاوخوا کې.

په هغو سمڅو او کندو کې چې د جګړې پر مهال د پټیدو ځایونه وو. موږته په کار ده چې په پورتنیو ځایونو کې نا پیژندل شوو شیانو ته هیڅکله لاس ور نه وړو، سیمونه او مزي یې کش نه کړو. که د ماینونو او ناچاودلو توکو نښې نښانې ولیدل شي یا په انسان او حیوان وچوي، اړینه ده چې په نژدې سیمه کې د ماینونو پاکولو موسسې چارواکو ته خبرورکړو. په کوم ځای کې چې په سور رنګ، رنګ شوې ډبرې ولیدل شي، د ماین د شتون معنا لري. باید داسې سیمو ته ورنژدې نشو. په سپین رنګ، رنګ شوې ډبرې دا معنا لري چې نوموړې سیمه له ماینونو ځخه پاکه شوې ده. ماین د ژوند دښمن دی، باید له دغه دښمن ځخه ځانونه وساتو او دله منځه وړلو لپاره یې فني او مسلکي کسانو ته خبر ورکړو.

# پنځه ویشتم لوست

## د تدریس وخت: (درې درسي ساعتونه)

| ګڼه | سرلیکونه | موضوعګانې | وخت |
|---|---|---|---|
| ۱. | **د لوست موضوع** | **شاعر او سپوږمۍ** | |
| ۲. | د زده کړې پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې | د لوست په پای کې به زده کوونکي لاندې موخې تر لاسه کړي:<br>- د هېواد د شاعرانو له ډلې څخه به د ارواښاد بېنوا له شعر سره بلد شي.<br>- د نثر تر څنګ به د شعر په ژبه پوه شي.<br>- په زده کوونکو کې به شعري قریحه پیدا شي.<br>- له شعر سره به د زده کوونکو مینه پیدا شي.<br>- په زده کوونکو کې به شعري ښکلا او شعري قریحه پیاوړې شي.<br>- په زده کوونکو کې به د شعر لوستلو ورتیا پیاوړې شي.<br>- د زده کوونکو د وینا او لیک احساس به پیاوړی شي.<br>- په خپلواک ډول به د متن د پای فعالیتونو د سرته رسولو ورتیا ومومي. | |
| ۳. | د تدریس لاره | لوستل، لیکل، پوښتنې او ځوابونه، یوه ځری او ډله ییز فعالیتونه | |
| ۴. | د تدریس توکي | درسي کتاب، د بېنوا د شعرونو ټولګه، توره دړه، تباشیر، چارت، کتابچه او قلم | |
| ۵. | د ارزولو لاره او میتود | شفاهي ارزونه، پوښتنې، لیکل، لوستل. | |
| ۶. | په ټولګي کې د ښوونې او زده کړې فعالیتونه | **لومړنی فعالیت:**<br>ستړي مه شي، حاضري، د کورنۍ دندې کتنه. | ۶ دقیقې |
| | | **د انګېزې رامنځته کول:**<br>- په توري دړې د سپوږمۍ او شاعر د سرلیك لیکل.<br>- له زده کوونکو د سپوږمۍ د ښکلا په هکله د پوښتنو په کولو لوست پیلیږي. | ۴ دقیقې |

| ۶-۱ | د ښوونکي فعالیتونه | د زده‌کوونکو فعالیتونه | |
|---|---|---|---|
| | - ښوونکی په ښه او شعري ښکلا شعر لولي.<br>- ښوونکی د شعر په سم لوستلو کې له زده‌کوونکو سره مرسته کوي.<br>- ښوونکی دپښتو په لیکلي او شفاهي ادب کې دسپوږمۍ دبیابیا کارونې په اړه خبرې کوي.<br>- ښوونکی په شعر کې د نومول شوو کیسو په اړه زده‌کوونکو ته لنډ معلومات ورکوي.<br>- ښوونکی په پښتو لنډیو کې سپوږمۍ ته د وینا او له هغې څخه د مینانود مرستې د یوې وسیلې په توګه د کار د اخیستلو په اړه معلومات ورکوي.<br>- ښوونکی د ځوابونو په ویلو کې له هر زده‌کوونکي سره مرسته کوي.<br>- ښوونکی د وینا لپاره د ټولګي په وړاندې زده‌کوونکي هڅوي.<br>- ښوونکی زده‌کوونکو ته په خواږه او زړه راکښونکي غږ د سپوږمۍ د شعر دیکلمه ورزده‌کوي.<br>- ښوونکی د خالي ځایونو په ډکولو کې له زده‌کوونکو سره مرسته کوي او په پای کې کورنۍ دنده سپاري. | - زده‌کوونکي شعر ته غوږ نیسي.<br>- زده‌کوونکي په سم ډول شعر لولي.<br>- زده‌کوونکي په پښتو ادبیاتو کې د سپوږمۍ د ښکلا په اړه د کارول شوو کلمو په معنا ځانونه پوهوي.<br>- زده‌کوونکي په شعر کې د یو څو راوړل شوو کیسو د نومونو له مخې د کیسو پر محتوا او متن باندې ځان پوهوي.<br>- زده‌کوونکي په دې پوهیږي چې ولې سپوږمۍ په شعر او لنډیو کې زیاته کارول کیږي او په شعرونو او لنډیو کې له چا سره پرتله کیږي.<br>- زده‌کوونکي د ټولګي په وړاندې د نوبت له مخې د سپوږمۍ په اړه یوه، دوه دقیقې وینا کوي.<br>- زده‌کوونکي د سپوږمۍ د شعر دیکلمه زده‌کوي.<br>- زده‌کوونکي پوښتنو ته ځوابونه وایي.<br>- زده‌کوونکي په کورنو کې کورنۍ دنده سر ته رسوي. | ۳۵ دقیقې |

**۷- د متن د پوښتنو ځوابونه:**

- سپوږمۍ د خپلې ښکلا له مخې یار ته ورته کیږي او بله دا چې زموږ لاس ورته نه رسیږي.
- د سپوږمۍ په شعر کې د لیلا مجنون او شیریني- فرهاد کیسو ته ګوته نیول شوې ده.

همدا راز په پورته شعر کې سید بهاء الدین مجروح، عبدالرؤف بېنوا، ګل پاچا الفت، علي محمد مخلص او عبدالمنان دردمند نومونه یاد شوي دي. نوموړي د پښتو ژبې نومیالي او پیاوړي لیکوال او شاعران تېر شوي دي.

**۸- ښوونکي ته لارښوونې او د معلوماتو سرچینې:**

د لازیاتو معلوماتو لپاره د بېنوا لاندې اثار وګورئ:

- د هسک پېغله، شعري ټولګه
- پرېشانه افکار، نثرونه
- د بېنوا شعري کلیات
- ګیت آنجلۍ،د رابندرناتهـ تاګور لیکنه، د بېنوا ژباړه

## شپږویشتم لوست

### د تدریس وخت: (درې درسي ساعتونه)

| وخت | موضوعګانې | سرلیکونه | ګڼه |
|---|---|---|---|
| | **د مشرانو حقونه** | **د لوست موضوع** | **۱.** |
| | د لوست په پای کې به زده کوونکي لاندې موخې تر لاسه کړي:<br>- د مشرانو پر دریځ باندې به پوه شي.<br>- د مشرانو درناوی ته به په کې وړتیاوې رامنځته شي.<br>- مشرانو ته به د درناوي او په کشرانو باندې به د زړه سوي او مهربانۍ مینه په کې پیدا او ځواکمنه شي.<br>- په زده کوونکو کې به دا احساس پیاوړی شي چې د مشرانو درناوی په حقیقت کې د ځان درناوی دی.<br>- په زده کوونکو کې به د تخلیقي او نوو لیکنو او وینا وړتیاوې وروزل شي.<br>- د زده کوونکو د وینا او لیک احساس به پیاوړی شي.<br>- په خپلواک ډول به د متن د پای فعالیتونو د سرته رسولو وړتیا ومومي. | **د زده کړې پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې** | **۲.** |
| | لوستل، لیکل، پوښتنې او ځوابونه، یوه ځری فعالیت، ډله ییز فعالیت | **د تدریس لاره** | **۳.** |
| | درسي کتاب، توره دړه، تباشیر، چارت، کتابچه او قلم | **د تدریس توکي** | **۴.** |
| | شفاهي ارزونه،لیکلې ارزونه، د څارنې ارزونه. | **د ارزولو لاره او میتود** | **۵.** |
| **۶ دقیقې** | **لومړني فعالیتونه**: ستړي مه شي، حاضري، د کورنۍ دندې کتنه. | **په ټولګي کې د ښوونې او زده کړې فعالیتونه** | **۶.** |
| **۴ دقیقې** | - **د انګېزې رامنځته کول**:<br>- په توره دړه د (مشرانو حقونه) د سرلیک لیکل.<br>- د مشرانو په اړه له زده کوونکو څخه په یو څو پوښتنو د لوست پیلول... | | |

| ۱-۶ | د ښوونکي فعالیتونه | د زده‌کوونکو فعالیتونه | |
|---|---|---|---|
| | - ښوونکی متن په لوړ غږ لولي.<br>- ښوونکی د متن په لوستلو کې له زده‌کوونکو سره مرسته کوي.<br>- مشران څوک دي او څه حقونه لري؟ ښوونکی په دې هکله زده‌کوونکو ته معلومات ورکوي.<br>- ښوونکی د عمر ښېلابېلو پړاوونو ته د زده‌کوونکو پام اړوي.<br>- ښوونکی پر کشرانو باندې د زړه سوي اومهربانۍ پر اړتیاوو زده‌کوونکي پوهوي.<br>- ښوونکی د ځوابونو په ویلو کې له هر زده‌کوونکي سره مرسته کوي.<br>- ښوونکی د وینا لپاره د ټولګي په وړاندې زده‌کوونکي هڅوي.<br>- ښوونکی د لوست لنډیز بیانوي.<br>- ښوونکی په ډله ییز فعالیت کې له زده‌کوونکو سره مرسته کوي.<br>- ښوونکی زده‌کوونکو ته د لوست د وروستۍ برخې د پوښتنو د ځوابونو لارښوونه کوي.<br>- ښوونکی کورنۍ دنده ورکوي. | - زده‌کوونکي متن ته غوږ نیسي.<br>- زده‌کوونکي په چوپه خوله متن لولي.<br>- څو تنه زده‌کوونکي د مخکیني نوبت له مخې متن لولي.<br>- زده‌کوونکي د مشرانو حقونه پېژني.<br>- زده‌کوونکي مشرانو ته د درناوۍ پر اړتیا او د هغې په ټولنیزو ګټو ځانونه پوهوي.<br>- زده‌کوونکي په دې پوهیږي چې که څوک خپل درناوی غواړي باید د نورو درناوی وکړي.<br>- زده‌کوونکي ددې لوست نوې کلمې په نښه او په جملو کې یې کاروي.<br>- زده‌کوونکي پوښتنو ته ځوابونه وایي.<br>- زده‌کوونکي په وار سره د ټولګي په وړاندې د خپلې خوښې پر یوې موضوع خبرې کوي.<br>- زده‌کوونکي په ډله ییز فعالیت کې فعاله ونډه اخلي.<br>-زده‌کوونکي د لوست په لنډیز ځان پوهوي.<br>- زده‌کوونکي په ځانګړې توګه د متن د وروستۍ برخې پوښتنو ته ځوابونه وایي. | ۳۵<br>دقیقې |

**۷** - **د متن پوښتنو ته ځوابونه**

- ښوونکی دې د زده‌کوونکو د ښې مینې او ذوق د راپیدا کولو لپاره د فعالیتونو مختلفې برخې په ډېر غور د متن له منځ یا د هغوی د درك پر بنسټ پر هغوی کار وکړي.

**۸** - **د متن پوښتنو ته ځوابونه**

**د مشرانو حقونه**

د مشرانو د حقونو په باب باید له هر څه مخکې مشران وپېژنو چې موږ چاته مشران وایو. مشران ښېلابېل دي، لکه: د سن یا د عمر، د علم او پوهې لوړه کچه،سیاسي مشرتابه او د کلیو او بانډو مشران ... .

د ولسونو او پرګنو ترمنځ ډول ډول دودونه او رواجونه شته چې خلک په دودیز ډول د هغې پیروي کوي. بې له شکه له دې ملي او ولسي دودونو څخه یو هم د مشرانو درناوی دی. له مشرانو سره په ناسته او ولاړه کې ښایي ډېر ټکي په پام کې ونیول شي: د مشرانو په وړاندې په ورو او نرمۍ خبرې وشي، په مخکې یې بېځایه خندا ونه شي، په مجلس کې مشرانو ته پښې ونه غځول شي، له ګوتو څخه ټکونه ونه ایستل شي، پزه سوڼ نشي،په وړاندې یې

ډېرې خبرې ونشي. همدارنګه د مشرانو په وړاندې ودرېدل، په مجلس کې ځای ورته پرېښودل او د نورو په تېره بیا د مشرانو د خبرو په منځ کې نه لوېدل د ادب غوښتنه ده.
له مشرانو او کشرانو سره د مخامخ کېدو پر وخت کې هغوی ته بشپړ سلام (السلام علیکم ورحمة الله و برکاته) ویل او د دوی د سلام په ځواب کې علیکم السلام ویل اړین دي.
د پلار او مور حقونه هم د مشرانو او هم د مور او پلار په توګه ښايي په پام کې ونیول شي. د هغوی ژور درناوی او احترام باید وشي. د پلار، مور او نورو مشرانو له ځورولو ډډه وشي. له دوی سره د ژوند د ستونزو په هوارولو کې مرسته وشي. د اسلام سپېڅلي دین ارزښتونه موږ ته په ګوته کوي چې: "جنت د مور او پلار تر قدمونو لاندې دی."
په دې معنا چې موږ باید د مور او پلار خدمت وکړو، تر څو د دوی د خدمت په وجه د الله جل جلاله رضا ترلاسه کړو.
د اسلام د سپېڅلي دین له حکمونو او لارښوونو سره سم د مشر ورور حقونه هم د پلار په شان دي. کشران، که وروڼه دي یا خویندې د اولاد په شان دي. که د چا په حقوقو کې ستاسو له خوا کمښت راغلی وي، بخښنه ورڅخه وغواړئ.
باید یادونه وکړو چې کشران د عقیدې او دود له مخې له مشرانو مخکې پر ډوډۍ خوړلو پیل نه کوي. کشران له مشرانو په لاره وړاندې نه ځي. د کشرانو لپاره د مشرانو لارښوونې په توره شپه یا تیاره کې د څراغ په شان دي. د اسلام سپېڅلی دین هر مسلمان، نارینه او ښځې ته د مشرانو د درناوي سپارښتنه کوي، لکه چې د اسلام ستر پېغمبر حضرت محمد مصطفیﷺ فرمایلي دي: "څوک چې د لویانو درناوی او پر کشرانو شفقت نه کوي، زموږ له ډلې څخه نه دی."
لوی خدایﷻ له مؤمنانو وروسته د عالمانو ستاینه کړې چې د پوهې له امله لویان او د دین لارښوونکي دي؛ په دې معنا چې عالمان او پوهان یې په خپلې ستاینې سره خاص یا ځانګړي کړي دي.

# اووه ویشتم لوست

## د تدریس وخت: (درې درسي ساعتونه)

| ګڼه | سرلیکونه | موضوعګانې | وخت |
|---|---|---|---|
| ۱. | **د لوست موضوع** | **صفت او ډولونه یې** | |
| ۲. | **د زده کړې پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي موخې** | د لوست په پای کې به زده کوونکي لاندې موخې تر لاسه کړي:<br><br>- د پښتو ژبې په ګرامري برخه کې به په صفت او د صفت په ډولونو پوه شي او په جملو کې به هغه وپېژني.<br>- د ژبې په ګرامري جوړښت کې به د زده کوونکو ورتیاوې ځواکمنې شي.<br>- د ژبې له ګرامري جوړښت سره به یې مینه پیدا شي.<br>- په یو پښتو متن کې به د صفت د بېلابېلو ډولونو د پېژندلو ورتیاوې تر لاسه کړي.<br>- په زده کوونکو کې به د نوو لیکنو او وینا ورتیاوې وروزل شي.<br>- په خپلواک ډول به د متن د پای فعالیتونو د سرته رسولو ورتیا ومومي. | |
| ۳. | **د تدریس لاره** | لوستل، لیکل، پوښتنې او ځوابونه، یوه ځری فعالیت، ډله ییز فعالیتونه | |
| ۴. | **د تدریس توکي** | درسي کتاب، توره دړه، تباشیر، چارت، مختلف رنګونه، کتابچه او قلم | |
| ۵. | **د ارزولو لاره او میتود** | شفاهي ارزونه،لیکلې ارزونه، د څارنې ارزونه | |
| ۶. | **په ټولګي کې د ښوونې او زده کړې فعالیتونه** | **لومړني فعالیتونه**: ستړي مه شي، حاضري، د کورنۍ دندې کتنه | ۶ دقیقې |
| | | - **د انګېزې رامنځته کول**<br>- په توره دړه د نوي لوست د عنوان لیکل،<br>- د صفت د ډولونو په اړه له زده کوونکو څخه په څو پوښتنو د نوي لوست پیلول | ۴ دقیقې |

| ۶-۱ | د ښوونکي فعالیتونه | د زده‌کوونکو فعالیتونه | |
|---|---|---|---|
| | - ښوونکی متن په لوړ اواز لولي.<br>- ښوونکی د متن په لوستلو کې له زده‌کوونکو سره مرسته کوي.<br>- ښوونکې د صفت لوست په څو برخو ویشي. هره برخه یې په جلا جلا ډول له بېلګو سره یو ځای په زده‌کوونکو تمرینوي. د ډاډ له تر لاسه کولو وروسته بلې برخې ته ځي او د لومړۍ برخې په څېر یې پر زده‌کوونکو تمرینوي. وروسته ټول لوست یو په یو په زده‌کوونکو تمرینوي او تر هغو دا فعالیت تکراروي چې پر لوست د زده‌کوونکو له پوهېدو څخه ډاډمن شي.<br>- ښوونکی د ځوابونو په ویلو کې له هر زده‌کوونکي سره مرسته کوي.<br>- ښوونکی د وینا لپاره د ټولګي په وړاندې زده‌کوونکي هڅوي.<br>- ښوونکی د لوست لنډیز بیانوي.<br>- ښوونکی په ډله ییز فعالیت کې له زده‌کوونکو سره مرسته کوي.<br>- ښوونکی زده‌کوونکو ته د متن د وروستۍ برخې د پوښتنو د ځوابونو لارښوونه کوي. | - زده‌کوونکي متن ته غوږ نیسي.<br>- زده‌کوونکي د ښوونکي له لارښوونې سره سم متن له ځان سره لولي.<br>- څو تنه زده‌کوونکي د مخکېني نوبت له مخې د نورو په وړاندې لوست لولي.<br>- زده‌کوونکي د ډله ییزو فعالیتونو په بهیر کې د صفت او د هغه ډولونه پېژني او په متن کې یې د پېژندلو وړتیا تر لاسه کوي.<br>- زده‌کوونکي په بېلا بېلو جملو کې صفت او ډولونه یې کاروي او له زده‌کړې یې ځان داډمنوي.<br>- زده‌کوونکي د متن نوې کلمې یادوي او په جملو کې یې کاروي،<br>- زده‌کوونکي اړوندو پوښتنو ته ځوابونه وایي.<br>- زده‌کوونکي د ټولګي په وړاندې په وار سره پر یوې موضوع یوه، یوه دقیقه خبرې کوي.<br>- زده‌کوونکي په ډله ییز فعالیت کې فعاله ونډه اخلي.<br>- زده‌کوونکي د متن د وروستۍ برخې پوښتنو ته په خپلواک ډول ځوابونه وایي. | ۳۵<br>دقیقې |

**۷ - د متن پوښتنو ته ځوابونه**

- ښوونکی دې د زده‌کوونکو د ښې مینې او ذوق د راپیدا کولو لپاره د فعالیتونو مختلفې برخې په ډېر غور د متن له منځ یا د هغوی د درك پر بنسټ پر هغوی کار وکړي.

**۸ – ښوونکي ته د زده‌کړې سرچينې:**

**ستاينوم (صفت):**

صفت په خپلواک ډول څه نه نوموي، خو د يوه نوم حالت او څرنګوالی ښيي ، په دې معنا چې صفت د نوم معنا ښه څرګندوي، محدودوي او روښانوي، لکه: روغ، ناروغ، ښکلی، بدرنګ، غښتلی، کمزوری، تور، سپين او نور...

په پښتو ژبه کې صفت د لوړتيا ، د پوړونو يا لړ والي، ډېروالي، توندوالي او شتوالي لپاره بېلابېلې درجې نه لري، د نورو بشپړو کلمو او اداتو په واسطه خپل پوړونه، درجې او طبقې ښکاره کوي، لکه: ښه، ډېر ښه، لاډېر ښه، خورا ښه، تر ټولو ښه، سپين، ډېر سپين، خورا سپين، تر ټولو سپين، زښت زيات سپين او داسې نور...

په پښتو ژبه کې معمولاً صفت تر موصوف دمخه راځي، لکه: تور کميس، ښه هلک او نور...

**د ستاينوم (صفت) ډولونه:**

۱- عادي يا اصلي صفت، ۲- نسبتي صفت، ۳- فعلي صفت، ۴- ابهامي او استفهامي صفت، ۵- اشاري صفت، عددي صفت.

۱- اصلي صفت :هغه صفت دی، چې په يو نوم پورې اړوند حالاتونه، ښه وي که بد ، څرګندوي، لکه: مشر سړی، ښه سړی، چې پکې (مشر او ښه) اصلي صفتونه دي. په دوه ډوله دی:

الف: ساده صفت: هغه صفت دی، چې يو توکی يعنې مفرده کلمه وي، لکه: ښه، بد ، تور، سپين او نور...

ب: مرکب صفت: هغه صفت دی، چې دوو او يا زياتو توکيو څخه جوړ شوی وي، لکه: توريالی، پوهيالی، ناپوهه، ختڅګر او نور...

نسبتي صفت: هغه صفت دی چې د يو شخص يا يو شي نسبت يو شي يا يو ځای ته کوي. نسبتي صفت د مرکبو صفتونو له ډلې څخه دي، چې مشهورې ننښې يې دادي: (وال، نرمه (ی) خېل، زی، نی، يز، ين او نور، لکه: کامه وال، کابلی، سلېمانخېل، سدوزی، اوسنی، وريښمين او نور...

فعلي صفتونه: هغو صفتونو ته ويل کېږي چې په هغه کې د يو کار کولو معنا پرته وي، که هغه فاعلي وي، لکه: تلونکی او تللی، که مفعولي وي، لکه: وهلی، ساتلی او نور...

ذاتي صفت: هغه نوم چې د ذاتي صفت په وسيله توصيف شوی وي، موصوف نومېږي، له خپل صفت سره د موصوف ترکيب ته توصيفي ترکيب وايي، لکه:

ګړندی سړی دی، لېونی هلک دی او نور...

يادونه: هغه صفتونه چې د مفرد ، جمع، نارينه او ښځينه لپاره يو ډول راځي، د مشترکو صفتونو په نوم يادېږي، لکه: ښکاره مثال، ښکاره مثالونه، ښه هلک، ښه هلکان، ښکاره خبره، ښکاره خبرې او نور...

په پښتو ژبه کې معمولاً صفت تر موصوف د مخه راځي، په نارينه، ښځينه، جمع، مفرد کې د خپل موصوف تابع وي، په دې معنا چې د صفت او موصوف ترمنځ مطابقت او سمون لازم دی، لکه: خوږه مېوه، خوږې مېوې، خوږ ختڅکی، خواږه ختڅکي، او نور...

صفتونه د پای په تغير او لفظي حالتونو کې د نومونو په څېر دي او د موصوف تابع دي، مثلاً:

| فاعلي حالت | مفعولي حالت | ارتباطي حالت |
| --- | --- | --- |
| تورو سترګو وخوړم | دا ماشوم هلک چا وواهه | د ښو خلکو خدمت کوه. |

کله کله په هغه صفتونو کې چې د نوم معنا پکې زياته وي، بې له موصوف څخه راځي، لکه:

په فاعلي حالت کې: ړوند په سترګو څه نه ويني.

مفعولي حالت: کوڼ يې وواهه.

ندایي حالت: اې کونه یا اې کنې
ارتباطي حالت: د ړانده امسا ده.
صفتونه د تفصیل او مبالغې د شتون او نشتوالي له امله په درې ډوله ده:
۱- مطلق: هغه دی چې د صفت اصلي معنا پرته له زیاتوالي او تفصیل څخه څرګنده کړي، لکه: دا چای تور دی، دا ختکی خوږ دی.
۲- تفصیلي: هغه دی چې د یو صفت زیاتوالی په موصوف باندې څرګند کړي، لکه احمد له تا مشر دی.
ابهامي صفتونه یا ناڅرګند صفتونه: ابهامي صفت هغه دی چې د یو شي معلومه اندازه او شمېرنه نه ښئي، بلکې په نامعلوم ډول د یوه شي ښودنه کوي، لکه:
ټول هلکان حاضر دي.
درست شاګردان واړه دي.
استفهامي صفتونه: هغو صفتونو ته وایي چې د پوښتنې په وخت کې استعمالېږي، نومونو ته اختصاص او ټاکنه ورکوي، لکه:
څومره غنم دې په کار دي؟
څو کتابونه اخلې؟
اشاري صفتونه: که چېرې د اشارې په واسطه د یو بل نوم خاصوالی یا اختصاص څرګند شي اشاري صفت ورته ویل کېږي، لکه:
لکه: دا هلک څوک دی؟
دا خوږې هندوانې د چا دي؟
عددي صفت: عددي صفت هغه دی چې د یوه نوم شمېر، رتبه یا درجه څرګنده کړي، لکه: شمېر، یو سړی، دوه سړي، درې تنه او نور...
رتبه: اتم هلک، څلورمه ډله، دریمه میاشت.
مرکب صفتونه، لکه:

| نوم: | مرکب صفت |
|---|---|
| لو | لوګر |
| پلمه | پلمه ګر |
| ختې | ختګر |
| سودا | سوداګر |

هغه صفتونه چې د سرینه په یو ځای کولو جوړېږي، لکه: پوه- ناپوه، وړ- ناوړه، بللی- نابللی، جوړ- ناجوړ او نور...
هغه صفتونه چې له دوو جلا جلا کلمو څخه جوړېږي، لکه:
سپین سترګی
غټ سری
سندرغاړی
لنډ فکری
خوابدی

بد سترگی او نور...
مجرد صفتونه: هغه دي چې یوازې یو حالت، یو صفت او یا یو کیفیت څرگندوي، په دې معنا چې یوازې په یو صفت او یو کیفیت دلالت کوي او خارجي وجود ونه لري، لکه: پوهه، روغتیا ، لېونتوب او نور...
مجرد صفتونه: په دوه ډوله دی: ساده- مرکب
ساده: هغه صفتونه دي، چې یو توکی لري، یعني یو توکیزه کلمه وي، لکه: لوړه، تنده، ډاډ ، وېره، تلوار، سد ، عقل، فکر او نور...
مرکب: هغه صفتونه دي چې څو توکي ولري، لکه:
سړیتوب- ناجوړتیا او نور...

# اته ویشتم لوست

## د تدریس وخت: (درې درسي ساعتونه)

| ګڼه | سرليکونه | موضوعګانې | وخت |
|---|---|---|---|
| ۱. | **د لوست موضوع** | **نظم او ډولونه يې** | |
| ۲. | **د زده کړې پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي موخې** | د لوست په پای کې به زده کوونکي لاندې موخې تر لاسه کړي:<br><br>- زده کوونکي به د نظم او نثر پر توپير پوه شي.<br>- په زده کوونکو کې به د نظم او نثر تر منځ د توپير ورتياوې رامنځته شي.<br>- د نظم او ادبي ښکلا په اړه به په کې د مينې احساس پياوړی شي.<br>- په زده کوونکو کې به د نظم اوشعر د ليکلو ورتياوې وروزل شي.<br>- په زده کوونکو کې به د ځه ليکلو او ځه ويلو ورتيا ځواکمنه شي.<br>- په خپلواک ډول به د متن د پای فعاليتونو د سرته رسولو ورتيا ومومي. | |
| ۳. | **د تدريس لاره** | لوستل، ليکل، پوښتنې او ځوابونه، يوه ځری فعاليت، ډله ييز فعاليتونه | |
| ۴. | **د تدريس توکي** | درسي کتاب، توره دړه، تباشير، چارت، کتابچه او قلم | |
| ۵. | **د ارزولو لاره او ميتود** | شفاهي ارزونه،ليکلي ارزونه، د څارنې ارزونه | |
| ۶. | **په ټولګي کې د ښوونې او زده کړې فعاليتونه** | **لومړنی فعاليت**:<br>- سترې مه شي، حاضري، د کورنۍ دندې کتنه | ۶ دقيقې |
| | | - **دانګېزې رامنځته کول: د سرليک د موندلو په اړه پوښتنې**<br>- د نظم ډولونه سرليک  په توره دړه ليکل،<br>- د نظم او شعر په هکله د پوښتنو له لارې د زده کوونکو د پخوانۍ پوهې معلومول او په دې توګه د لوست پيلول،.. | ۴ دقيقې |

| ۱-۶ | د ښوونکي فعالیتونه | د زده‌کوونکو فعالیتونه | |
|---|---|---|---|
| | - ښوونکی متن په لوړ اواز لولي، - ښوونکی د متن په لوستلو کې له زده‌کوونکو سره مرسته کوي. - ښوونکی متن په څو برخو ویشي، له زده‌کوونکو سره د نثر په اړه خبرې کوي او ورته وایي چې زموږ ورځنۍ خبرې اترې او د متنونو لوستل یو ډول نثر دی. نظم او شعر له ورځنۍ وینا او خبرو اترو څخه توپیر لري. په دې توګه دې نظم ته د زده‌کوونکو پام راواړوي. - ښوونکی تر دې دمخه چې پر لوست پیل وکړي، باید له زده‌کوونکو څخه د نظم یو څو بېلګې وغواړي. - ښوونکی د ځوابونو په ویلو کې له هر زده‌کوونکي سره مرسته کوي. - ښوونکی د وینا لپاره د ټولګي په وړاندې زده‌کوونکي هڅوي. - ښوونکی د لوست لنډیز بیانوي. - ښوونکی په ډله ییز فعالیت کې له زده‌کوونکو سره مرسته کوي. - ښوونکی زده‌کوونکو ته د متن د ورستیو پوښتنو د ځوابونو لارښوونه کوي ښوونکی د کورنۍ دندې لارښوونه کوي. | - زده‌کوونکي متن ته غوږ نیسي، - زده‌کوونکي متن په چوپه خوله لولي، - څو تنه زده‌کوونکي د مخکیني نوبت له مخې متن لولي، - زده‌کوونکي د نظم او نثر پر توپیر ځان پوهوي، - څو تنه زده‌کوونکي په خپله خوښه د ټولګي په وړاندې د نظم او نثر د توپیر په اړه خبرې کوي، - که د زده‌کوونکو کوم نظم یا شعر په یاد وي، د نورو په وړاندې یې لولي او نور زده‌کوونکي ورته غوږ نیسي، - زده‌کوونکي د لوست نوې کلمې په ګوته کوي او په جملو کې یې راوړي، - زده‌کوونکي پوښتنو ته ځوابونه وایي، - زده‌کوونکي د پخواني نوبت له مخې د ټولګي په وړاندې په وار خبرې کوي. - زده‌کوونکي په ډله ییز فعالیت کې فعاله ونډه اخلي، - زده‌کوونکي په خپلواک ډول د متن د وروستۍ برخې پوښتنو ته ځواب وایي. - زده‌کوونکي په کورنۍ د نده ځان پوهوي چې په کور کې یې تر سره کړي. | ۳۵ دقیقې |

**د متن پوښتنو ته ځوابونه**

د نظم ډولونه: په پښتو ژبه کې نظمونه په دوه ډول دي، یو ډول ته یې ملي نظمونه او بل ډول ته یې مشترک نظمونه وایي.

۱- ملي نظمونه هغه دي چې یوازې په پښتو ژبه کې دي او په نورو ژبو کې نشته، لکه: لنډۍ، سروکی، ملي رباعي، چاربیتي، بګتۍ، نارې او ږغونه.

۲- مشترک نظمونه: هغه دي چې په پښتو، دري، عربي او اردو ژبو کې په مشترک یا ګډ جوړښت ویل کیږي لکه: غزل، قصیده، بولله، رباعي، قطعه، مثنوي، مستزاد، مربع، مخمس، مسدس، مسبع، مثمن، معشر، ترجیع بند او ترکیب بند دي.

**ښوونکي ته د زده‌کړې سرچینې**

**مشترک نظمونه**

**۱- غزل**

د نظم له اقسامو څخه یو ډېر مشهور قسم دی چې په ټولو دیوانونو کې زیاته برخه لري. د غزل لومړي بیت ته مطلع وایي. د مطلع دواړه مسرې او د نورو بیتونو دویمې مسرې یو له بله سره په قافیه کې یو شی وي او په وزن کې د غزلې ټولې مسرې سره برابر ې وي. د بیتونو شمېر یې له پنځو څخه نیولې بیا تر پنځلسو پورې رسېږي. غزلې که څه هم په ډېرو موضوعاتو کې ویل کېږي مگر اکثره عشقي وي، نمونه یې داده:

چې دې وګوري و مخ ته وطن پرېږدي
وطن څه دی چې روح والوځي تن پرېږدي
که ښنتن وي د تومنو ستا په مینه
درویزه کاندي اختیاره تومن پرېږدي
بلبلان که دې له حسنه خبردار شي
ستا د مخ په ننداره به چمن پرېږدي
څه خو مخ و بتخانې و ته جار باسه
چې د بتو پرستش برهمن پرېږدي
ښه چې زړه مې مسافر شو ستا په لورې
عقیق لاشي قیمتي چې وطن پرېږدي
د جفا د مړو ژوند څه دی حسینه
که جور خوی زما ګلبدن پرېږدي

**۲- بولله:**

یو ډول شعر دی چې په عربي کې قصیده ورته وایي. په قصیده کې خورا اوږده او ډول ډول مضامین ویل کېږي. د بیتونو شمېر یې له شپاړسو څخه نیولی بیا تر دوو سوو پورې رسېږي. په قصیده کې هم د غزلې په شان د لومړي بیت دواړه مسرې او د نورو بیتونو د دویمې مسرې قافیه یو له بله سره یو شی وي او په وزن کې یې ټولې مسرې سره برابرې وي. دغه بولله عبدالقادر خان خټک ویلې ده:

شګفته په باغ او راغ شول د بهار ګل
هم په بام هم په کوڅه هم په دیوار ګل
نه یوازې ګل د ګلو بوټي ونیو
بادام ګل، شفتالو ګل ونیو انار ګل...
... چې ښبان د خپل آشنا ورځنې مومي
ځکه یاد عبدالقادر کړ په تکرار ګل
په بیاض کې مې د شعر ډول ډول
شګفته مې تر راښه هزار هزار ګل

**۳- رباعي:**

رباعي هغه دوه بیتونه دي چې د لومړي بیت دوې مسرې د دویم بیت له دویمې مسرې سره په قافیه کې یو شی

وي. نو له دې امله د پښتو له مخصوصې رباعۍ سره چې د ملي نظمونو په برخه کې مو ولوستل توپیر لري. مثالونه یې دادي:

خزان چې راشي چمن تالاکا
د بڼ بلبلې په واوېلا کا
نن که وصال دی سبا هجران دی
نیازمند به واړه سره جلا کا

**۴- قطعه:**

دوه یا تر دوو زیات بیتونه دي چې د لومړي بیت د دوو مسرو قافیه سره یو شی نه وي، مګر د بیتونو دویمې مسرې یو ډول قافیه لري، لکه:

چې هاتیان ساتې پیدا که لویه خونه
چې هاتیان پرې نتوځي هسې ور
ګیدړ هر چېرته خپل وخت ساعت بدل کا
لوی ځنګل بویه زمري لره یا غر

**۵- مثنوي:**

په مثنوي کې ټول بیتونه یو ډول قافیه نه لري، خو د هر بیت د دواړو مسرو قافیه باید سره یو شی وي او د بیتونو شمېر یې هم یوه ټاکلې اندازه نه لري، بلکې د هغې موضوع په اوږدوالي او لنډوالي پورې اړه لري چې شاعر یې په دې ډول شعر کې ادا کوي، په نمونه کې یې د ښاغلي خادم دا لاندې مثنوي وګورئ:

نوي نسل ته!
اې د پاک وطن فرزنده
اې د قام خوږه دلبنده
د افغان د باغ سنبله
د پښتون د بڼ بلبله
سبا ته مسؤول د کار یې
که ته مور او که ته پلار یې
ښه اخلاق او علم زده کړه
هله هله تلوسه کړه
علم هر چا له پکار دی
نه چې تش د نرو کار دی
ښځه نر دواړه مسؤول دي
خو په ښه عمل مقبول دي

تر پایه...

**۶- مستزاد:**

هغه شعر دی چې یوه مسره یې اوږده او بله یې لنډه وي، دا لاندې شعر ته مستزاد وایي:

نه غوږ لرم چې واورم نه په خوله د خیر ویل کړم
مدام منت پر بل کړم

چې قهر راشي عقل مې مغلوب شي نو ښکنځل کړم
مدام منت پر بل کړم
که هر څو کتابونه رنګ په رنګ و ځان ته ډېر کړم
او ښې تر نظر تېر کړم
راپېښنه بدبختي ده چې يوه زره عمل کړم
مدام منت پر بل کړم
مرض يم درد و غم يم نه دوا يم نه درمل کړم
مدام منت پر بل کړم

۷- مربع:

يو ډول شعر دی چې بند يې دوه دوه بيته وي، د سر په دوو بيتونو کې څلور سره مسرې يو ډول قافيه لري، وروسته بيا په هرو دوو بيتونو کې لومړۍ درې مسرې يو له بله سره په قافيه کې يو شی وي مګر څلورمه مسره يې له لومړيو دوو بيتونو سره يو ډول قافيه لري او د شعر تر پايه پورې دا مراعات پکې کېږي.

د پير محمد کاکړ د مربع يو څو بندونه دادي:

زړه مې نادان و د مينې غل شو
فراق يې اورو راباندې بل شو
راحت مې واړه په غم بدل شو
اوښې سيلاب دی صورت مې شل شو
زيبا نګار چې زه راپه ياد کړم
له درد و غمه آه و فرياد کړم
قبول حيران يم د چا ارشاد کړم
بيل له ما خواره د لارې مل شو
عمر مې صرف شو په معصيت کې
شاکر يې نه شو په هېڅ نعمت کې
اوس صبح و شام يو په دا حيرت کې
مقبول به خدایﷻ ته په کوم عمل شو

۸- مخمس:

د مخمس هر بند له سره څخه تر پايه پورې پنځه پنځه مسرې دي. لومړې پنځه مسرې يو ډول قافيه لري، په نورو بندونو کې لومړۍ څلور مسرې يو له بله په قافيه کې سره يو شی وي مګر پنځمه مسره يې له لومړيو پنځو مسرو سره يو ډول قافيه لري او د شعر تر پايه پورې دغه مراعات پکې کېږي. د حميد ماشوخيل د مخمس يو څو بنده دادي:

د هجران له لاسه ناست يم وير ژړلی — لکه بت په غټو سترګو دم ختلی
بېهوده په صورت روغ په زړه تتلی — بېلتانه په مرګي حال يم رسولی
ربه راولې اشنا په سفر تللی...

۹- مسدس:

هر بند يې شپږ شپږ مسرې لري. لومړۍ شپږ مسرې يو ډول قافيه لري. په نورو بندونو کې لومړۍ پنځه مسرې يو

له بله پلوه په قافیه کې سره یو شی وي، مګر د شپږمې مسرې قافیه د لومړیو شپږو مسرو پر قافیه باندې بنا کېږي، د شمس الدین کاکړ د مسدس یو څو بندونه وګورئ:

وخت د سحر دی مرغان چغېږي — جرس آواز کا زړه مې لړزېږي
سترګې مې غورځي بانه رېږي — اثر د غم دې رامعلومېږي
کوم بد خبر به راورسېږي
د یار د تللو خبرې کېږي...

مسبع، مثمن او معشر هم دغه ډول اشعار دي، خو صرف د مسرو په شمېر کې توپیر لري. څرنګه چې ددې اشعارو له نامه څخه هم ښکاره ده، د اشعارو بندونه په مسبع کې اووه او په مثمن کې اته او په معشر کې لس مسرې لري چې د سر په بند کې د ټولو مسرو قافیه یو له بله سره یو ډول وي او په نورو بندونو کې نورې مسرې یو ډول قافیه لري، مګر یوازې د پای د مسرې قافیه د سر د مسرو پر قافیه باندې بنا کېږي.

۱۰- ترجیع بند:

د ویلو ترتیب یې داسې دی چې لومړی څو بیتونه وویل شي، وروسته بیا یو بیت چې د دواړو مسرو قافیه یې یو له بله سره یو شی وي، مګر د نوموړو بیتونو سره یې قافیه بېله وي ورولوېږي او دغه بیت پس له هر بند څخه تکرارېږي.

په ترجیع بند کې د هر بند د بیتونو شمېر غالباً د پنځو او لسو بیتونو په منځ کې وي، مګر پنځه بیتیز، اووه بیتیز او نهه بیتي ډېر رواج لري او کله کله یې د بیتونو شمېر تر لسو هم زیاتی کوي. د ترجیع بند د ټولو بندونو د بیتونو شمېر باید مساوي وي.

د پیر محمد کاکړ د ترجیع بند یو څو بندونه دادي:

ستا پر مخ پر تورو زلفو زه شیدا یم — صبح و شام په آه فغان په واوېلا یم
په فراق کې دې تل خورم د ځیګر وینې — صبر و توان مې بې تا نشته مبتلا یم
نن فلک راباندې تیغ د جور وکېښ — له سرو وینو ډک لړمون لکه حنا یم
رقیبان راسره جنګ و جدل کاندي — په دربار کې دې د سپیو مدعا یم
غزاله غوندې وحشي راځخه مشه — زه صیاد دې د دیدن په تمنا یم
که شل کاله دې مانې وي له ما یاره — بیګانه مې هنوز مه ګڼه آشنا یم
له آشنا مکړه مانې بې وفایي ده
چې سیځي مین بې اوره جدایي ده...

۱۱- ترکیب بند:

له ترجیع بند سره صرف دومره توپیر لري چې په ترجیع بند کې کوم بیت چې وروسته تر هر بند راځي، تکرارېږي، مګر په ترکیب بند کې وروسته تر هر بند یو بېل بیت چې بېله قافیه او بېله معنا لري، راوړل کېږي. په ترکیب بند کې هم د ټولو بندو د بیتو شمېر باید سره مساوي وي، د حمید د ترکیب بند یو څو بندونه دادي:

په منزل به یې سبا ګوره څوک مله وي — نه پوهېږم چې به سار وي که به غله وي
په څه شان به شکسته زهیر په زړه وي — له نغمې به یې د زړه نغمه په خوله وي
دم قدم به یې خولې د مخ په وله وي — رانجه کړي به یې چا خاورې د پله وي
سزاوار د هر ستم د هر پیغور یم
چې مې یار په سفر تللی زه پر کور یم...